

د ارواښاد ډاکتر کبیر ستوري د لومړي تلین په یاد

شي پورته به ټپې د یکه زار په سردرو کې
سندرې بـــه د یار نوي سازونو له راځي

# یــه قــربان

شعري ټولګه

محمداجان یار

خپروونکی: د پښتونخوا د پوهنې دېره ـ پېښور

بسم الله الرحمن الرحيم

## ځانګړنې:


د کتاب نوم : *یه قربان*

شاعر :: محمدا جان یار

چاپ زیار :: بصیر بېدار ستوری

خپرندوی :: د پښتونخوا د پوهنې دېره ـ پېښور

چاپ نېټه :: اپریل 2007م /1386ل ـ حمل

چاپ شمېر :: 1000 ټوکه

کمپوزر :: ذبیح شفق

چاپ او کمپیوټرځای

د دانش خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه ـ پېښور



***Tel:2564513/ Email:danish2k2000@yahoo.com***

# يـه قـــربان

## شعري ټولګه

شاعر:
محمدا جان یار

*خپرندوی: د پښتونخوا د پوهنې دېره ـ پېښور*

مــه وکتـای پـــر پېچ زلفــې د تــرکـــــو
چې په هر تار مې و زړه ته جنجال پرېووت

"حمید بابا "

هنـر پخپلـه پېچلتیـا ده، کـه د مانـا پېچلتـا وي او کـه د وسـیلو (ژبـه، رنـګ، تـار، شـونډو، غـاړې، پـردې) حمیـد بابـا د پاسـني بیـت پـه لـومړۍ مـصرع کـې ژبـه اړولـې ده. (کاشـکې) د ترکو پر پېچ زلفې مې کتلې مه وای، ځکه چې...

دلتــه مــا لــومړۍ مــصرع د شــعري وزن (تــول) ځنــې ژبنــي وزن (تــول) تــه واړولــه او هاغــه آهنګ او موسیقي، چې په شعري وزن کې یې لاره، اوس یې نه لري. یوه بله بېلګه:

سبا به بیا کډې بارېږي
د دشت ګلان به ستا لمنې بویوینه

ابهـام او ایبهـام دواړه خـوږې خوېنـدې دي، چـې د شـعر پـه بـام اشـارې کـوي. پـه دې لنـډۍ کـې د کوچیـانۍ پېغلـې انځـور دی. پـه ښـکاره خـو پکـې کوچیـان او کوچیـانۍ نـشته، ولـې د کډو بارېدل د کوچیاني ژوند نړدې (قرینه) ننبه ده.

دغــه راز د ګلانــو غــاړې ددې لپــاره هــسکې دي، چــې ســتا لــه لمنــې یــې خونــد او رنــګ اخیــستی دی. اوس چــې ســړی هــر څــومره دا مانــا پراخــوي (تفــسیروي) او راســپړي (تعبیـروي) ځـای پکـې شـته. ښـکلی خیـال پـه لنډ شـعر کـې راغلـی دی، نـو ځکـه شـاعر کـولی شـي د اوسـني وخـت بوخـت او سـتړي انـسان تـه داسې لنډ او د خنـد شـعرونه ولیکـي، چـې پـه لږه شېبه کې د چا ذهن دمه کړي یا وپاروي.

چې وهي د فکر ژامې باندې شخوند
زیـــاتوي هـــومره خـبره مـزه خوند

پېچلتیــا او لنــډوالی خــور او ورور دي، چــې د حــساس ذهــن خاونــدان پــسې ګرځــي. نــه وایـم چـې سـاده "پېچلـی " (سـهل المتنیـع) ګونـدې هنـري ارزښـت کـم وي. توبـه توبـه داسـې نـه ده، ښـکاره داسـې ښـکاري چـې دا شـعر خـو هرڅـوک جـوړولی شـي، خـو زه وایـم چـې دا شـعر ډېـر کـم شـاعران جـوړولای شـي، ځکـه پـه سـهل المتنیـع شـعر کـې بـه د کـلام پرېـووت سـاده وي، خو مانا به یې زوروره وي.

د حمزه بابا دا شعر خو سړي ته د ملنګۍ کچکول وریغاړه کوي:

څومره په ما ګران دي د اشنا لیدل
لاړمـــه بیـــا راغلمه اوس بیا ځمه

د بیا راتګ ورسره شته، د وخت پرله پسې والی یې دومره په اسانه او خوږه ژبه اچولی، چې بل څوک یې نه شي دا ډول اچولی او یا به یې په بل ډول اچوي.

"یار" زه ډېر ښکالـه پخوا راهیسې پېژنم. ډېر مهربانه او خوږ دوست دی، همېشه یې خوله له خندا ډکه وي. هاغه وخت موږ دواړو د ښوونځي ترانې د ښه راغلاست نظمونه او انتقادي نظمونه لیکل. کونړ کې دغه وخت رازقي نړۍ وال له موږ ټولو مخکې و، ځینې نور کسان هم و، خو اوس مې نومونه هېر دي.

"یار" د غمونو او دردونو شاعر دی. ده په پرانېستو سترګو د خپل هېواد ستره غمیزه لیدلې. هغه په هرڅه چې یې وس رسېدلی په ظالم ګوزار کړی دی. ډرامې، لنډې کیسې، ترانې، رومانونه او شعرونه یې لیکلي دي.

"یار" ډېر ځلې د پوهې خبره کړې ده او د زړه خبره یې هماغسې ناوې پرې ایښې ده، خو شعر یو احساسي شی دی، ځکه نو شاعر له دې احساسه مه لرې باسئ. هغه ته مه وایئ، چې مه ژاړه، هغه ته مه وایئ چې مه خانده. هغه ته مه وایئ، چې ستاسو په څېر شي، که داسې وشي نو ګناهونه به پټ پاتې شي. ځناورتوب به لا زړور شي او ناخوالې به خپلې منګلې سرې کړي.

بل دا چې هغه ستاسو په څېر اروا نه لري، هر څومره چې دا احساس شي، چې اروا ته ننوتی وي، هغومره ستاسو د اروا او غږ اورېدلی شي. آ د لوی استاد الفت خبره ده وایي: "شاعر ځکه په تاسو ګران دی، چې ستاسو د زړه خبره کوي". شاعر د انسان د ټولنیز ژوند سره یو ځای پیدا شوی، د شاعر خبره موږ ته لکه یوه پاکه او خوندوره خبره ده.

شاعر په مشرانو او کشرانو یو شان ګران دی، یوازې په هاغو کسانو نه وي ګران، چې خیرن ایمانونه لري.

په کلیمه خو ناپاکان خپل ایمانونه مېنځي
ماته په وخت د ځنکدن یوه ټپه ووایه.

**علي ګل پېوند**

هامبورګ، جرمني

* * *

# ساندې

سپين ږيري بابا په خپل سر باندې لونګۍ سمه کړه، بيا يې غاړه تازه کړه، هر چا د هغه مخ ته کتل، چې بابا به څه خبره کوي؟ بابا يو نظر د ناصر باغ کېمپ خړو کېږديو ته وکتل، بيا يې يو سوړ اسويلی وکړو:

ـ ارمان ارمان دی خپله وطنه !

د سپين ږيري بابا د زړه د تل نه راوتې اسويلي د هر چا په ذهن سوالونه راپورته کړل، خو بابا د زړه خبره په زړه کې پاتې نه کړه:

ـ مورې به خامخا ځو اخر تر کومې به د "پردو "لاس ته ناست يو؟

زه يو خوا ته ولاړ وم، دغه هرڅه مې ليدل، ماته د سپين ږيري په خبرو کې ډېر لوی اعتماد واضحه ښکارېدو. خبرې وشوې او هر څوک د خپل خپل سوچ سره په خپله مخه لاړل، خو زه بيخي اتاله پاتې شوم. د سوچونو يو داسې خړ سېلاب په خپله غېږ کې واخيستم، چې "ورکې د نظر د حدونو بيخي پته نه لګي"

هو، وطن، وطن وي، خپله خاوره خپله مور وي، د لوی افغانستان هاغه بې شمېره ګلالي ماشومانو ته مې خيال شو، چا چې تراوسه صرف د خپل وطن کيسې اورېدلي دي. چا چې تراوسه صرف د خپل کور کلي تصور کړی، خو لا په خپلو سترګو يې د خپل بابا وطن نه دی ليدلی او بيا د فکرونو په نيلي سور د پښتونخوا د حدونو نه ډېر لرې لاړم ان تر اروپا ورسېدم. دلته مې ډېر افغانان په نظر راغلل، د هغوی په مخونو که هرڅو د لږ څه اطمينان نښې ليدل شوې، خو ما په دغه اطمېنان کې د تالا واله افغانستان عکسونه واضحه ليدلی.

زه د اروپا په ښا يستونو کې ورک ورک ګرځېدم، چې د کبير ستوري نوم مې تر غوږه شو، زه پښه نيولی شوم، په دې خيال چې دا وا ورم، چې زما د دغه محترم مشر تذکره څوک کوي، چې سترګې مې واړولې نو هلته د کونړونو د خاورې يو بل حساس وطنپال او پښتونپال پښتون ولاړ و. ما په لومړي نظر کې هغه وپېژندو، ځکه چې ما دغه قام پرست ملګری د خپلو ليکونو په هنداره کې د وړاندې نه ليدلی و. دا محمدا جان يار و. يو شاعر، يو ناول نګار، يو افسانه نګار او د دې هرڅه نه سېوا په خپل قام او خاوره کې محمدا جان يار !.

"يار "ماته وکتل، د ملګرو ټولګي نه راووتو، جوخته غاړه يې راکړه، بيا يې زما په اوږه لاس کېښودو، زه ورسره په درنو درنو قدمونو روان شوم. ماته يې غلي غوندې وويل:

ـ ملګريه ! زه نه پوهېږم، چې څنګه به يو ځل بيا په خپله خاوره سپرلی وينم؟ کله به د هاغه رنګونو او ښا يستونو سيلونه وکړم؟ کله به د خپل کونړ په سپرلو کې د ځوانۍ خاپونو لټون وکړم؟

ما د هغه مخ ته وکتل، نو راته پرې د فکرونو او سوچونو تورې لړۍ واضحه ښکاره شوه:

ــ نو دلته خو هرڅه شته او په افغانستان کې دداسې ژوند تصور نه شوی دی او نه کېدی شي؟

محمداجان یار یوه اوږده ساه راښکه او ویې ویل:

ــ روره ! وطن، وطن وي او مور په دې هم پوهېږو چې دا هرڅه راسره چا وکړه او بیا یې وویل:

وطن یې زموږ لوټ کړو ښه په غټو ورته ګورو

چې عقل بــه بیا کله دې سرونو ته راځي

ما د محمداجان یار دغه شعر د زړه په غوږوونو واورېدو او د احساساتو په ژبه یې پوه شوم، ورته مې ویل:

ــ یاره ! ستا شعر خو زه داسې وبوږنولم. هغه بیا یو سوړ اسویلی وکړ او ویې ویل:

ــ ورورره ! دا شعرونه نه دي، دا څړيکې دي، چې د زړه د تل نه مې راځي. بیا یې وویل:

"یار" ته خو راواخله د وطن کیسه

لګي په ده ښه د کابل جان کیسه

ما به څه ویل، چې محمداجان یار بیا وویل:

خدای زده د کلي مرغۍ چېرته لاړې؟

دلته کــارغــان د بــل وطن راغلي

* * *

د نیمو شپو ټپې دي ګرمې پکې

رانه د کور کلي حجره پاتې شوه

محمداجان یار شعرونه ویل او زما د زړه زخمونه تازه کېدل، ځکه چې زه د پښتون قام په دغه بدبختۍ زهیرېدم. ماته هاغه ټول تاریخي حقیقتونه مخ مخ ته کېدل د کومو په ذریعه چې په شعوري توګه د پښتون قام د وجود د تالا والا کولو هڅې لا هم روانې دي. ما دا سوچونه کول، چې خدایه نن به څومره حساس شاعران لکه د محمداجان یار د وطن ساندې وایي؟ څومره بې کوره پښتانه به د خپلې خاورې په ارمان وي؟ خو دا د حالاتو جبر دی او د محترم رحمت شاه سایل خبره چې "جبر نازولی وي" نو موږ د وخت څپېړو ته مخونه نیولي دي، تر کومې به مو وهي او چرته به مو رسوي؟ موږه یې تعین نشو کولی. ما به لا نور سوچونه کول، چې محمداجان یار راته وویل:

ــ ولې ملګریه ! ته خو لکه چې خپه شوې؟ بیا په خندا شو ویل پرېږده سوچونه په دې به عمل کوو، چې:

"د جانان غمه په خندا دې تېرومه"

زه خو ګوره په دې هم پوهېږم، چې:

صفـــا صفـا خبره راته وکړه ته
هله به جانانه سپينه خوله درکړم

مـا ورتـه وويـل، چې "يـاره" مـنم چې سـتا پـه شـاعرۍ کې رومانيـت هـم شـته، تغـزل هـم شـته، روانـي او موسـيقيت هـم شـته، خـو پـه مجمـوعي طـور دا د وطـن سـاندې دي. دا د وطـن نـه د لـرې والي احساس دی، زه ستا د دې شعر نه هم خبر يم، چې:

دې خوار نصيب رابېل کړم د وطن د تاترو نه
پيدا ومـه خـزان کـې پـه خزان ورژېدم

"يـار" چې زمـا نـه خپـل دا شـعر واورېدو، نـو پـه سـترګو کې يې اوښـکې راغلـې، دومـره قـدر يې وويل، چې هو لايقه ته ما پېژنې! زما د ژوند دغه يو ارمان دی، چې:

دا زړې حجرې به کله شي ابادې
پکې غږ د يه قربان او بيا غزل شي

مـا د "يـار" پـه اوږه لاس کېښود، ورتـه مې وويـل: غـم مـه کـوه وروره! پـه تـوره شـپه پسې سبا راځـي او دغـه وخـت يـو افغـان ماشـوم پـه چغـه وويـل، چې: "وا خلـئ تـاوده وړي، وا خلـئ تـاوده وړي" د دې چغـې سـره زمـا د فکرونـو لـړۍ وشـلېدله، چې خيـال مې وکـړو نـو زه د ناصـر بـاغ د کېمـپ مـخ تـه ولاړ وم او وړو وړو افغانـانو پـه بوجـو کـې د لارو نـه کاغذونـه راغونـډول. مـا يـو سـوړ اسـوېلی وکـړ، پـه درنـو قـدمونو د هاغـه ځـای نـه روان شـوم. د ځـان سـره مې دومـره قـدرې وويل:

د ظالمانو دې کور وران شي
چې يې تالا کړل زموږ ښکلي ګودرونه

لايق زاده لايق

ډايرېکټر

ريډيو پاکستان ـ کوهاټ

27 مارچ 2007

هاغې پورې تاترې نه
پورته غږد یه قربان شو

بیا د کوم لاروي زړه کې
ښکته پورته خپل جانان شو

زه هم واخیستم یادونو
یوې تپې ته مې ځان جوړ کړو

چې ناثاپه راکټ راغی
ډز شو کلی زموږ وران شو

2005/3/16

* * *

# غزل

د زړه بلبل مې ژاړي چې ګلزار وسوځېده
پردي اور کې زمونږ کلی او ښار وسوځېده

بیا بلې بلا کډه زمونږ وران کلي ته راوړه
ستي لوړ مازديګر شولو سهار وسوځېده

د کليو شنو ګودرو باندې بل غم راپرېوتی
د لويې لارې په سر ها غټ چينار وسوځېده

کوځې له برېتورو نه هر کلي کې خالي شوي
منګي شول درې ورې چې سېتار وسوځېده

په چم کې به مې بيا د يه قربان غږ نشي پورته
ټپې شولې سرسامې يکه زار وسوځېده

راټول شول اسويلي د ليلى دښته کې لمبه شول
د هر پښتون يتيم ورپکې پلار وسوځېده

په سوي کخ مې لا پسې سکروټې راورېږي
له دې غمه زخمي زړګی د يار وسوځېده.

2003/3/13

کولن، جرمني

✲ ✲ ✲

# غزل

د وینو ثاڅکي راورېږي د ګلونو چم کې
د انځورونو تماشې دي د رنګونو چم کې

ازغو نیولي په منګول کې د وږمو وزرونه
لوخړې خېژي د باروتو د عطرونو چم کې

د مینې خیال خو د هنداري په پنجره کې بند دی
دا ستړی وړی کله خوب وړي ښاپېستونو چم کې

کوچۍ خندا به بیا هېلبند د ښتو کې پورته نشي
خوښي به رانشي هېڅکله د زخمونو چم کې

سندرې ګرانې شوې بلبلو ته د عشق په ژبه
مړې ولولې شولې د خوارو ارمانونو چم کې

وږمې خورې کړه ننګرهاره د ګلونو ښاره
چې په خندا شي نارنج ګل د وربلونو چم کې

وځي یاغي خیالونه خامخا یاغي مغزونه
زلمي به پورته کړي ګردونه اتڼونو چم کې

د یار په وچو شونډو هله به خندا خوره شي
چې ژړا بس کاندي سندرې د سازونو چم کې

2001/6/18
کولن، جرمني

# غزل

په مینه مې رقیب له لاسه اور ولګېده
د ښکلو چم کې غلی غلی شور ولګېده

غماز راته په مینه باندې اور کړلو راپورې
په سپینو پرښتو باندې څه تور ولګېده

باران غوندې نظر یې اورېده زما په لوري
افسوس چې په جانان مې اثر نور ولګېده

دا ستا نازو مکېز مې په لېمو کې دی ساتلی
قاتل د مینې راغی زړه مې خور ولګېده

سورلاس د غمازونیوه مری، زما د مینې
د هر چا ګوزار سم زما په کور ولګېده

اشنا د خولې خبرې مې په زړه باندې پټې، دي
د یار غزل په زړه زما ټکور ولګېده

2003/8/2 جرمني، کولن ښار

✲ ✲ ✲

# غزل

شم ماشوم کله سکروټو او سپرغو سره لوبېږم
سین په غاړه سپینو شګو، کوټنو سره لوبېږم

د هاړ سرو غرمو ته رغړم د سین سپینو شګو غېږ کې
هاغه چم ګاونډ ماشومو جینکو سره لوبېږم

د سپېره ډاک خړو خاورو د اغزو منځ کې مې شپه شي
دې خزان وهلي بڼ کې سرو غوټو سره لوبېږم

د ماښام توره تیارو نه کړمه څېرې لمن ډکه
د خپل وران کلي کوڅو کې له کوټو سره لوبېږم

خیال کې اوړي راوړي هغه ماشومتوب او زلمیتوب مې
لاړ شم هاغې وخت شېبو ته اندېښنو سره لوبېږم

او سنی پړاو د ژوند خو بیخي هسې ګچې ګول کړم
تش باد بړي اسویلي مې له سلګو سره لوبېږم

دا تراخه حالات چې یاره کله ستا عقل یاغي کړي
لاره ورکه شي له مانه لېونو سره لوبېږم

2005/12/9
جرمني، کولن

# سوله

کچکول د خیر مې دی په غاړه د بل چا وطن کې
الهي نوره سوله راولې زما وطن کې

څومره اوږده شوله په مونږه دا غمیزه نوره
بچې راوړي د نفاق توري بلا وطن کې

د غم غدۍ رالګېدلې ده په مونږه باندې
وشول بې رحمه تالانونه زما او ستا وطن کې

نور دا غریب ملک له جګړې نه په امان کړې ربه
یار شو بې واکه خپلې ابۍ او د دادا وطن کې

1993/6/18
کولن، جرمني

✵ ✵ ✵

# غزل

قاتلان په غاړه کې ګردنۍ وړي
دا ښکاريان زما د غرونو غرځنۍ وړي

څه تالان مې په ملي شتمنۍ وشو
دې رېښې رېښې ګرېوان نه مې تڼۍ وړي

هديرو نه مې هډوکي ځي پنجاب ته
د کونړ د غرو نښترې خو دوبۍ وړي

لېوني لېوان راځغلي زمونږ غرو ته
په غاښونو کې ددې وطن هوسۍ وړي

لږ راکوز شه د رباب کوزو پردو ته
دښمنان دې ادم خانه درخانۍ وړي

د بل چا په ښاېست تېر نه وځې ياره
مَېن زړونه ستا د خپل چم لېونۍ وړي

✵ ✵ ✵

# غزل

کوم ګرېوان به تر لمنې پورې دوه شي
چې د چا په سترګو پورې تور کجل شي

لېوني به خپل ګرېوان تنهۍ، تنهۍ کړي
چې وربل يې پاس په وربځو ول په ول شي

ټول بدرنګه دي مخ خپل کلي ته ستون کړي
چې ښاپېست زموږ د کلي يو په سل شي

دا زړې حجرې به کله شي ودانې
پکې غږ د يه قربان او بيا غزل شي

ددې خپلې خاورې مينه راسره ده
په قسمت که د وطن ناوې مې مل شي

چې د يار په کور چا اور دی لګولی
د هغه په کور دې هغسې اور بل شي

2001/4/12
جرمني، بون

* * *

# غزل

شونډې اغزو بيا په ګلونو ايښي
مالګې غماز په پرهرونو ايښي

قاتل د ګلو اوروي اورونه
د غضب نښې يې په زړونو ايښي

افسوس له ډېرې بې وسۍ له لاسه
سرونه موږ په زنګونو ايښي

بيا به له کومه شي هغه ننګيالي
چې سپينې تورې يې په سرونو ايښي

ساتي به هغه خپل وطن له غېرو
چې هتکړۍ يې په لاسونو ايښي

مور دې پې بوره شي پښتون خو نه دی
له زوړ دښمن سره يې لوزونه ايښي

د تورو زېرمو د نيولو په نيت
زورور هر ځای کې دامونه ايښي

بې اسوېلو نور څه کوی شي ياره؟
دښمن دې بيا په کور ګامونه ايښي

2003/5/22

✲ ✲ ✲

# غزل

دا ځل درانه ګامونه اخلم په کرار ځمه
څو پښتانه ګامونه اخلم خو هوښیار ځمه

دلته دا ټولې لارې ګوره هدیرې ته تللي
ځانته به نوې لاره ګورم پخپل وار ځمه

په زړو لارو زیاتي نه ځم ستنوم ګامونه
د مینې لاره باندې هر کله سرشار ځمه

ډېرو له ځان سره په بدلو لارو بوتلمه زه
چې اسوېلو وي پاکه کړې په دا لار ځمه

په منصوري لاره یار درومي د جانان کلي ته
که رقیب لارې ټولې بندې کړي په دار ځمه

2004/5/16

جرمني، کولن

✵ ✵ ✵

# غزل

د مخ ښاپست دې د زلفانو په تورتم واخیست
دې تورې شپې رانه دا سپین سحر یو دم واخیست

په تروږمۍ کې را ایسار یمه رڼا ده چېرې؟
پخپل نصیب کې مې ټول عمر د چا غم واخیست

په خلیته لارو چې درومې خود به لوېږي هغه
کسم که بیا مې په بدل لاره قدم واخیست

هره ادا به دې د زړه تاخچه کې ساتم اشنا
که دې په مینه کې قدم را سره سم واخیست

خپلو وروڼو دم پردو په غشو وویشتمه
د نفاق اور د یار په کلي کې هر چم واخیست

2005/1/6، کولن، جرمني

✲ ✲ ✲

# دوعا

ربه توبه مې ده چې هسې ګنهګار نشمه
زموږ امام پسې کافرو اقتداء کړې ده

په سجده پراته شېخان اوس هغه وعظ نکړي
بيا يې سياسي بازار کې چا سره سودا کړې ده

خوشې ټول عمر دې بدل واعظ ته ولې ناست وم؟
خلکه اسلام په نوم ده څومره ناروا کړې ده

هر څوک به لولي اوس زمونږ د نادودو کيسې
د تباهۍ وسه په موږ باندې هر چا کړې ده

يمه پوه شوی چې هر څه مې پردي کېږي رانه
خپلې پښتو باندې مې دا ځل بسم الله کړې ده

ټينګ پښتانه ګامونه اخلم ياره ورو ورو به ځم
راته په خوب کې خوشال خان بابا دوعا کړې ده
2005/2/28 جرمني، راين

# غزل

اوښکې ګرېوانه کې لارې ځي
خولې نه مې اوږدې اوږدې کوکارې ځي

اور دی لګېدلی په نصیب زما
ځکه مې له سترګو اوښکې دارې ځي

لولپه شو هسې دا ګوګل زما
کوکې مې له خولې نه له ناچارې ځي

هرڅه نه حالاتو سم بې غمه کړم
چیغې مې هرخوا ته خوارې ځي

ګرځي غمازان د یار په کلي کې !
سوي اسويلي مې په څو وارې ځي

2003/12/20، کلن، راین

✵ ✵ ✵

# بلا

دا ستونی مې راډک شولو ژړا راغلې ده
کاله ته مې د بل وطن بلا راغلې ده

خپه نشئ جانانه زما ډېره بې وسې ده
دا لویه بدبختي مور ته پخوا راغلې ده

په ډېرو د کپسې غونډې ناسته دا بلا ده
په هېڅ دا سې نه ده چې په ما راغلې ده

زما زنګینې تورې نه لا اوس هم په لړزه ده
خو دا ځلې په زور ددې دنیا راغلې ده

ددې بلا قوت او یاره ستا خالي لاسونه
خو ستا د کور بېتې ورسره صلا راغلې ده

کولن 2004/12/31

✲ ✲ ✲

# قطعه

وچې نه کړې اوښکې دې په مخ باندې
وچ پتري د وچو شونډو اوبه غواړي

بیا ولاړ ملنګ دی دروازې ته دې
سترګو نه دې مات کچکول کې ثه غواړي

2006/1/28

* * *

# ثلوریزه

دلته خو هر چا خپله طالع ښه ازمایلې ده
پام کړه زوروره ! ستا هم شپې ورپکې ګرانې دي

دې کنډو کپر کې له ډېرو نه ساه وتې ده
دلته اراده د یرغلګرو پښېمانې دي

2004/6/5

جرمني، بون

* * *

# شکرې

راځئ چې وکړو سندرې زړو کې
پیدا کړو ښې ښې شان خبرې زړو کې

ځان به راونغاړو د ترخو نه زیاتي
نه ساتو بس دی زورورې زړو کې

د اتفاق او د ورورۍ په تمه
کینه نور نه ساتو هېچرې زړو کې

د نوي ژوند ساز ته به غوږ ونیسو
چې شي ترخو په ځای شکرې زړو کې

یو ځای به وخاندو په ګډه سره
چې ارزوګانې مو شي غوره زړو کې

ځئ چې ګیلو او له ناندرو نه وځو
هیلې پیدا کړو معتبرې زړو کې

وکړو خبرې د منطق په ژبه
ورک کړو دا ډار و بېره او لرې زړو کې

یاره یو بل ته سره غاړې وځو
خبرې یو شي لرې او برې زړو کې

جرمني، کولن کوروایلر 2001/9/7

# غزل

زړه مې نرى د پيپل پاڼه کې سلام دروړي
څه نوى شور رالګېدلى دى پېغام دروړي

زمور له پاسه د رڼو ستورو مرۍ غوڅې شوې
ډېرې شهيدې شوې ورغوي کې ماښام دروړي

شفق له ستوني نيول شوى ترې سرې وينې څاڅي
سرې ماښام څاڅکي د وينو ګام په ګام دروړي

د سپېرې دښتې لارويه جل وهلى آشنا
د کونړ سيند نه پښتنه درته ډک جام دروړي

دا کوزې لارې ټولې بندې دي، پاس لاره څاره
د کوتره په وزر کې حال د بام دروړي

په صراط وړي به، هرڅوک يار ګنهګارې نغمې
ډېر ګناهونه به د وران جومات امام دروړي

2002/6/4

جرمني، کلن راين

# غزل

وطنه زما تنه زه له تانه پاتې شوم
نصیب دې زما ورک شي له جانانه پاتې شوم

پردي اسمان دلاندې تورو وربځو کې مې ګوره
خبر نه یم له ځانه چې له ځانه پاتې شوم

د وخت د ناکردو نه رانه پاتې کلی کور شو
اشنا سره بې لوزه او بې ایمانه پاتې شوم

ترخو ترخو حالاتو کړه خندا له مانه هېره
ټول عمر مې ژړا ده له خندا نه پاتې شوم

هر چا دي رسولي قافلې خپلې منزل ته
دا زه لېونی یوازې له کاروانه پاتې شوم

کړې مېچنې موږ باندې واعظ له لاسه وشوې
دده په اوتو بوتو له جهانه پاتې شوم

اوس ماته یاره پاتې د اسرې ځای چېرې نشو
خالي لاسونه سرګردانه پاتې شوم

2004/3/11

جرمني، روګندرف

# تور چم کې

اوښکې ګرېوانه باندې روانې شوې
شپې ورځې په دې وطن کې ګرانې شوې

خپل او پردي یو بل سره دښمن شولو
هیلې نورې ژوند پورې حېرانې شوې

ټولې لاپې شاپې سر کې ماتې شوې
ګډ په ویر شهیدې ارواګانې شوې

شرم، غېرت تللی ککرو نه دی
تور چم کې سوالګرې مې بیبیانې شوې

لاس تر زنې کېناوه حالاتو یار
پاڼې د تاریخ یې تاڼې تاڼې شوې

2002/1/3 کولن، راین

# غزل

راځئ په ګډه د کونړ غرونو ته لاس پورته کړو
چې له ځنګلو يې د نښترو جنازې لاړې

پردو قاتلو مې په غرونو باندې لوګه کړې
له هر نښتر د زړه نه سرې ترازې لاړې

هېڅوک د مه ويلو نښته هډيره دی وطن
هم مې د وران کلي کنډرو دروازې لاړې

د تور لينګيو او د وخت وږي چړي له لاسه
ټولې دنيا ته مې څه خوشې اوازې لاړې

سترې بيبيانې شوې بې ستره په پردو کوځو کې
د بې پردۍ زموږ هرځای کې انګازې لاړې

زه به تر مرګه له همدې ناخوالو سرټکوم
ياره دنيا نه ارمانجن او بې مزې لاړې

2005/3/4، جرمني، کولن

# غزل

د رقیبانو په زړو بیا ډېره غوسه پرته ده
په ژوبل زړه کې مې د وران کلي کیسه پرته ده

قاتل د حسن راګډ شوی مینې قتل شولې
د غره هوسۍ مې هم سوری سورۍ سینه پرته ده

ګرد دی په سپین مخ باندې پروت دی وچې شونډې ښکاري
خدای خبر خیال کې درته کومه تلوسه پرته ده

مونږه د ژوند په اوږو وړي تل درانه بارونه
زموږ نصیب کې بس همدغه سلسله پرته ده

دغو حالاتو ته چې ګورم خندنی غوندې شم
راته د ژوند په هر پړاو کې دسیسه پرته ده

سپېرو بادونو یکه زار له غرو هوجرو نه وړي
هغه له ښکلیو ډک مالت اوس هدیره پرته ده

غوتۍ د هیلو د ارمان په لمبه، لولپه شوې
ووایه ته زمانې ستا راسره په څه پرته ده

تقدیر زمونږ له جهنم د سرو لمبو سره دی
تل پښتنه خاوره په جنګ کې تکه سره پرته ده

ته اوروه دې د سکروټو بارانونه په مونږ
د آزادۍ مې د وطن سره وعده پرته ده

چې دې حېرانې ورځ ته وګورم پوکي بادوم
یاره ستا فکر کې همدغه وسوسه پرته ده

2006/2/6
جرمني، کولن

* * *

# غزل

ټول عمر را نه هسې په توبو تېر شوی دی
بې کاره لاس تر زنې په فکرو تېر شوی دی

د ژوند په راز خبر نشولو پټې سترګې ګرځو
ډېر وخت مو په ګوندۍ او تربګنو تېر شوی دی

بې علمه به یو ګام پښتو نه چېرې مخکې نشې
دا څومره بلا وخت دې په جنګو تېر شوی دی

ساعت ګړۍ خو نه ده له مودو مودو تېر وتی
هر دم قدم ستا ټول په غولېدو تېر شوی دی

هر چا شپې ورځې تېرې په خوښۍ او خوشحالۍ کړې
ټول عمر د یار تل په اسوېلو تېر شوی دی

2001/4/20

جرمني، کولن

✵ ✵ ✵

# څڼور

کوڅې زمونږ د ښار د لېونو نه خالي نه دي
دا غرونه د وطن مې د زمرو نه خالي نه دي

شپونکيه ګوتې پام کوه شپېلۍ نه ليرې نکړې
ډاګونه تاترې دې د رمو نه خالي نه دي

تالا والا کڅونو کې به وخاندي ګلونه
ګوګلې خامخا له اسوېلو نه خالي نه دي

شپې د ټټګ ټکورور پکې هر وخت کې تودې وي
هوجرې د پښتنو له مېلمنو نه خالي نه دي

روانې قافلې پسې خو ځان رسول غواړي
دا کړپې ګرانې لارې له لوېدو نه خالي نه دي

دا چوپې سندرمارې به بيا ځلې په ګډا شي
وستلې ميدانونه هم زلمو نه خالي نه دي

ډوله ته به رادانګې څڼور ځوانان د کلي
جذبې د پښتنو ياره پښتو نه خالي نه دي

*2001/9/24*
*جرمني، کولن*

✵ ✵ ✵

# غزل

شړنګ د سېتار غږ د جانان شغ د نښترو غبرګ کې
په سردرو کې رالوی شوی یم سندرو غبرګ کې

ځي راځي غوږ ته انګازې مې لا هماغه شانته
کله به پورته شي منګو بغا ګودرو غبرګ کې

ځمان به بیا زلمي کونړ د سیند په غاړه تش کړي
شوګېر وهلي به وي دي شي زورورو غبرګ کې

په شاړو دښتو او درو کې به ټپې پورته شي
سوله به راشي د هوا سپینو کوترو غبرګ کې

شي دړې وړې منګوټې به مېکدو په غاړه
ځوانان به وړي خواږه خوب وي سترګورو غبرګ کې

کم به نصیب وي یاره ستا د ټپې وار چې راشي
چې ارمانونه په خندا کړم در په درو غبرګ کې

راین په غاړه، 2004/10/19

# غزل

ما مې جونګړه جوړوله رقیب ورانه کړله
د زړه په سر راته هغه خونه ودانه کړله

درباندې پوه یمه مطربه تال دې بل شانې دی
ثنګ په هوجره کې دې بدل نغمه روانه کړله

سر چپه کوډي د حالاتو جادوګرو کړې
ثومره خوږه مینه یې بېله ما او تانه کړله

د غزل توري به د تورو سترګو تور کې ساتم
که شاعري مې له سایل او د کاروانه کړله

هله به یاره ښه شعرونه او غزلې لیکې
که دې ټپه بیا له سندرو یه قربانه کړله

2003/3/14

جرمني، کلن ښار

# لار

عذابونو زېږولی يمه شېخه
ولې ورکه دې کړه مانه د جنت لار

چې پخوا دې کړې هاغه خبرې نه کړې
تا کړه څنګه د سوچه اسلاميت لار

کله هم خو داسې نه و چې تا وکړل
ده معلومه موږ ته ښه د شريعت لار

د سوچه ږيرې او ښې سپينو جامو سره
ستا لپاره وه جومات د شرافت لار

خوشې هره خوا دې وکړل اورونه
اسلام هېر کړو تا نيولې د قدرت لار

خوار ولس دې د بلا په خوله کې ورکړو
ورته جوړه دې کړه ژوند کې د ذلت لار

په دېوانو يې خپل دين له مرۍ ونيو
ياره ورکه شوه پښتو او د غېرت لار

2002/6/4
جرمني، کولن

✲ ✲ ✲

کنډر کنډر وطن کې مې سلګونه بل ثه نشته

مزار ته مې د اوښکو ډیوې هر ماښام راوړه

کولن، راین

* * *

# بازان خبرې غواړي

خيالونه مې په زړه کې د جانان خبرې غواړي
غمونو او دردونو کې خواران خبرې غواړي

بې پلاره ماشومان زمونږ د وران کلي کوڅو کې
په خلکه دا به ثنګ شي يتيمان خبرې غواړي

دي لارې جوړې کړي يتيمانو په مخ اوښکو
د وير له لاسه دلته لونډ ګرېوان خبرې غواړي

ړندې شوې هغه مينې حسن ګونګې ښاپيرۍ شوې
ګذران د مينې ګران شو عاشقان خبرې غواړي

رالوتي تور کارغان مې په فضا باندې کاغ کړي
زما د غرو سرونو کې بازان خبرې غواړي

ځان جوړ که ياره شا به چې نن سبا د ټپې وار دی
غوږ غوږ دي تا ته هله شاعران خبرې غواړي

2003/7/5 جرمني، راين

# غزل

لپه دې نیولې تل د ځان په دوعاګانو ده
خیر به کله غواړې دغو خوارو پرګنو لره

دا خو زنځیري دې بېخي تمه ترې نه، نه کېږي
هېڅ ورتګ په کار نه دی میالي صیب لېونو لره

خوشې دې عبس رب په دې خاوره ښېندلي دي
هم دې اتفاق نه دی ورکړی پښتنو لره

دې د وخت لوټمارو ځانله دنګې ماڼۍ جوړې کړې
پاتې په خالي میدان پښتون دی تربګنو لره

اړوې لاسونه بیا غورزي کوې پردي ډول ته
نه ښایي بدرنګه ګډاګانې مېړنو لره

بې له هغې بدو سترګو یووړه پښتنه ناوې
مورې لوګی نه کړي حاجت نشته سپېلنو لره

هېڅکله به یار داسې حالاتو سره جوړ نه شي
ګوري دې څه بله چاره خپلو اندېښنو لره

2005/11/13

جرمني

# غزل

خوا ته رانزدې شه چې خپل زړه درکړم
دې نه زياتي ووايه نور څه درکړم

ته دې هم د زړه نه راته ووايه
لوظ به د مينې همدا زه درکړم

ښه صفا خبره راته وکړه ته
هله به جانانه سپينه خوله درکړم

خوا ته مې نزدې کړه خير دى ومنه
مينه کې رازونه به ډېر ښه درکړم

کله چې دې زړه کې يار ته ځاى ورکړو
راشه بيا به شونډو نه خواږه درکړم

2003/7/5

جرمني، راين

✲ ✲ ✲

# غزل

غمونه او دردونه مې خندا ته نه پرېږدي
بېلتون لارې نيولي ما اشنا ته نه پرېږدي

مدام راته په سر د بدبختۍ کپسه ناسته
شېبې د خوشحالۍ زمونږه خوا ته نه پرېږدي

اغزنه غوندې لاره مې کاله ته راستنه ده
تاو شوی د غم شپول رانه موږچاته نه پرېږدي

کافرې شانې ګوتې يارانې له مرۍ نيسي
دا مينې د خوږو زړونو وفا ته نه پرېږدي

د تورو غرو بلاوې راته مخکې کېږي
ولس او دا وطن مې ارتقا ته نه پرېږدي

شوګير د تورې شپې دې هيڅ سبا ورپسې نشته
تيارې دي د وختونو څوک رڼا ته نه پرېږدي

قتلېږي دلته مينه، محبت لويه ګناه ده
ځه ياره خداى دې مل شه ما خو تاته نه پرېږدي

2000/11/18
د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې په مشاعره کې

# باد راوړم

ګل نشومه غوټۍ وم په دامان ورژېدم
له خپل وطن نه لیرې په ارمان ورژېدم

ډېر ولټېدم ودرېدم د سوال په دروازو کې
د وخت له ناکردو نه په خپګان ورژېدم

پردو کوځو کې خوشې لاړم راغلم سرګردانه
ریدی د سوارو وم په بیابان ورژېدم

دې خوار نصیب رابېل کړم د وطن له تاترونه
پیدا ومه خزان کې په خزان ورژېدم

مَېن د خپل وطن په کانو بوټو خو ارمان چې
بې وخته بې وطنه بې جانان ورژېدم

یار ولېږئ یارانو پام چې دلته یې پرېنږدئ
باد راوړمه له کومه په المان ورژېدم

* * *

# غزل

د سیند په غاړه غاړه سپینو شګو په سر تلم
سوچونو وم اخیستی هېڅ په ځان نه پوهېدم

معلومه راته نه وه چې به چېرته زه روان وم
په شان د لېوني غوندې به تلمه سرګردان وم

ګرداب کې د یادونو چورلېدمه ډوبېدم
خیال یووړم له المانه آن د خپل کلي وستل ته

حیران، حیران مې وکاته د سیمې ټول محل ته
کسم د کاڼو بوټو په دیدن نه مړېدم

چې ولګېدې سترګې مې په ورانو کنډرونو
غړې کوزې پرتې وې د هاغو دنګو برجونو

په یاد مې وړوکتوب شو په کوڅو به ګرځېدم
نه هاغه خلک پاتې وو نه هاغه ودان کلی

ای یاره پروت و لوټې لوټې ستا د جانان کلی
راماتې مې شوې اوښکې په سلګو وژړېدم

2006/7/15
جرمن، کولن راین

# غزل

ساړه اسولي هر وخت زخمي زړونو له راځي
پردۍ مرغۍ زموږ د کلي ونو له راځي

چې عقل شي ياغي ژبه په ګډو وډو سر شي
توبې چې خولې ته راشي لاس غوږونو له راځي

سپېرې شوې د افغان د غرونو دنګې غاړې
بدرنګه سوداګري چې وهنو له راځي

ګېله راته پرېوتې غوړګي غلي غوږ کې وکړه
تورمخي د پنجاب زما وژنو له راځي

وطن يې زموږ لوټ کړو ښه په غټو ورته ګورو
چې عقل به بيا کله دې سرونو له راځي

يو وخت به دا سرسامې ککرۍ شي دړې وړې
ماجرې پښتنې به ګودرونو له راځي

شي پورته به تپې د يکه زار په سرو درو کې
سندرې به د يار نوي سازونو له راځي

2002/2/6

جرمني، کولن روګندرف

❋ ❋ ❋

# غزل

غلی به یمه خو په زړه باندې توپان لرم
سورۍ سینه باندې زخمي ارمان لرم

د یوه باڼه اشاره ستا راته خروار ښکاري
کمی مې نشته وایم ځانته لوی جهان لرم

دا غمازان د محبت مې ستا له مینې باسي
زړه کې جانانه ستا د مینې لوی فرمان لرم

چرته ښکاره راسره پام د سترګو جنګ ونکړې
په دې چنو او چم ګاونډ کې رقیبان لرم

په پښتانه لوظ له ما سره ولاړه اوسه
په ټیټ سر نه یمه بلد پښتون ایمان لرم

د زړه تاخچه کې مې خو ستا د مینې پت خوندي دی
وایي یار تا سره زه ټینګ عهد و پیمان لرم

1995/3/8

# کیسې

پربېږده نوري بس دی د ارمان کیسې
بیا رته راواخله د جانان کیسې

چاته د دې خپل زړګي حال ووایم
تېرې شوې په مونږه د خپګان کیسې

اوس د خوږې مینې کیسې پاتې دي
یوازې به کوي څو رقیبان کیسې

لاړه اوس خبره د کیسو شوله
ډېرې شوې ترخې اوس د افغان کیسې

دې کیسو کې خوند کسم دی نشته دی
راشئ چې نور واورو د جهان کیسې

چا هم راته ونکړه خوږه کیسه
ټولو راته وکړې د خپل ځان کیسې

یار ته خو راواخله د وطن کیسه
لګي په ده ښې د کابل جان کیسې

2002/4/8

* * *

# پسرلی

په هر چا پسرلی ژوند یې ګلونو سره دی
نصیب دې زما ورک شي له غمونو سره دی

تاریخ خو مې غېرت او د مېړانې کیسې وایي
تراوسه مې لا ژوند له سربښندنو سره دی

په ځان یمه پوه شوی نه مې دا شوه او نه هاغه
ازل مې ماتو ګوډو تقدیرونو سره دی

ورو ورو راته پخپل کاله کې ځان بې واکه ښکاري
وطن او سر مې دواړه له ګواښونو سره دی

دې تورو سپینو سرو راباندې خپله خوا کړه یخه
ټول وخت مې ځنازو او شوګیرونو سره دی

دې حال ته سوچ اخیستی یم خندا ده رانه هېره
فریاد ځکه سینه کې ماتو زړونو سره دی

پښې مې مېکدې په لوري لنډې لنډې کېږي
ساقي اوس پردی شوی سرو جامونو سره دی

بیا ځلې د جهان په قدرتونو کې ازمېښت شوم
عظمت د خپلې خاورې مې ننګونو سره دی

خوښي ده خوشحالي ده ياره هر خوا پسرلی دی
دا ژوند يوائې زمونږ له ويرونو سره دی

2003/12/2

## يو شعر

زه به اتڼېزه سليمان د غره راواخلمه
بيا که تورې بورې په سر ژڼکي اتڼ واچوي

2005/6/4

# غزل

دردونه مې په زړه باندې جانان له لاسه دي
راپېښې کشالې راته خپل ځان له لاسه دي

کافر زما د مینې مرۍ ونیوه له ستوني
زخمونه مې پراته اوس له هجران له لاسه دي

په ما یې دا زما جونګړه سمه کنډواله کړه
دا ټولې لاسوهنې پاکستان له لاسه دي

تاجک دی، که وزبک، که هزاره ټول دښمنان شول
ورانۍ او لمسونې د ایران له لاسه دي

یو بل ته په ماشه تل سنګرونو کې پراته دي
په موږ دا بدې ورځې خپل افغان له لاسه دي

ترڅو چې پکې یار ستاسې د سر و مال نه خلاص شو
نادودې اوس په موږ باندې جهان له لاسه دي

2002/10/30، جرمني، بون

# څلوريزه

د تورې بورې سرته بيا ځلي ډول وخېږوه
ياغي بادونو د وطن د ناوې شال وړی دی

د ښار کوڅه په کوڅه اورمه پردي سازونه
چا د هوجرې نه مې منګی او سپتار تال وړی دی

* * *

*

کلونه وشول چې روان يمه په ورکو لارو
په کومه لاره شمه چې ورشم د جانان کلي ته

دا ځل د زانو په کتار پسې مې نيت کړی دی
که په وزرو کې مې يو سي يو ارمان کلي ته

راين، جرمني

* * *

# بل ملنګ

مطرب راوېښ کړئ د رباب مزو کې ترنګ په کار دی
نوی محفل، نوی سینګار او نوی رنګ په کار دی

ما خو پخوا درسره لوز په پښتو کړی دی
راته خالي ګلې دا ستا د بنګړو شرنګ په کار دی

پردي وطن کجیران رالوزي زما غرونو ته
ورته پامیر او یا تورغره کې لوی ګړنګ په کار دی

چې غنم وربي بل احمد ته په شمله وتهومبي
بیا ځل جرګې د پښتنو ته بل ملنګ په کار دی

بله ملاله به شي پورته میوندي کړیکې ته
په دښمنانو باندې هغسې غورزنګ په کار دی

د مینې جنګ دی خیر دی بېرته که راستون نه شومه
ستا اننګو ته خو د یار د وینې رنګ په کار دی

1992/7/6 جرمني، راین

✲ ✲ ✲

# سپرلي ته

سپرلیه رانشې بې وخته دلته
کلي ښارونه کنډوالې دي پرتې

نصیب راوستې څومره سخته دلته
موږ ته لا ډېرې کشالې دي پرتې

د بڼ ځوانۍ لاړې نسکورې شولې
سږ د همدې سپېره خزان له لاسه

پېغلې غوټۍ ټولې سرتورې شولې
ددې بې رحمه شان توپان له لاسه

خدایزده د کلي مرغۍ چېرته لاړې؟
دلته کارغان د بل وطن راغلي

په غوږو اورم خوشې کاړې باړې
سرې بلاګانې له دکن راغلي

دلته لو شوي د ګلونو څانګې
د پېغلې سور سالو بادونو وړی

هر یو زړګی د غم په ټال کې زانګي
د کونړ یار هم دې غمونو وړی

2004/1/24

# غزل

بې واره لېونۍ غوندې سرلوڅې ده راوتې
اشنا د راتلو زېری ورته چا راوړی دی

کنډر کوڅو کې کنډونو باندې ګرځي
غېبي غږ يې په غوږ شي احوال ما راوړی دی

پام وکړي بيا روانه شي د شونډو په سر وايي
رېبار لکه چې حال د جانان بيا راوړی دی

د لارې لاروی پښه نيولی شي ور ګوري
تاثير يې د خپل حسن په هر چا راوړی دی

روانه شي په منډه د کوټې بلۍ ته خېژي
چارګل يې غټ په پوزه ناروا راوړی دی

په دې محل کې چا دا دومره ښکلې ده راوړې
چې ټول کلی يې ياره په غوغا راوړی دی

2004/1/2، کولن، راين

# غزل

ډولچي پاڅېږه، ډول دې ټول کلي کې وګرځوه
زما دې وران کلي کوڅو ته څوک کافر راغلی

غشي راواخلئ په دا ژڼکو باندې يې ووېشئ
پردي بدرنګه سوداګر زمونږ په غر راغلی

ږدي تنابونه راته لارې په شنه کخ کې باسي
له پاسه سور اور وروي په شور او شر راغلی

مټ مې له دغو سرو دېوانو سره سم دی کله
نه ږدمه تن ورته نن خير که مې په سر راغلی

د اژدها خولې کې به زهر شم دنيا به ګوري
د تاريخونو زوړ دښمن مې بيا په ور راغلی

تش اسويلی مې له خولې خېژي څه کولی شمه
د يار په کلي ټول پوهېږي زورور راغلي

2003/8/20

جرمني، روګندرف

# رنځ

څومره نادودي وکړي مونږ خپلو سرونو سره
دا خپل سرونه جنګوو هسې له غرونو سره

د تربګنۍ په رنځ پراته یو لا تراوسه پورې
په جنګ جګړو باندې اخته یو له مرګونو سره

خپله اګاه نه یو خو بل ته هڅو غوږ نه نیسو
قبیلوي سیستم کې ښکېل یو له غمونو سره

یو ورو د بل وینو ته ناست یو عجیبه مخلوق یو
کله به سیال نه شو په ژوند نورو ملکونو سره

هر څوک روان د ارتقا په لور منزل ته رسي
د پښتون عمر یاره تېر شو له جنګونو سره

2003/10/20

جرمني، روګندرف

* * *

# غزل

په ګرېوان مې ځي د اوښکو کاروانونه
له زخمي زه نه مې خېژي فريادونه

نوم د مينې به په خولې کله وانخلم
کبرجن اشنا مې مات کړل لوظونه

زړه کې پاتې مې زخمي نغمې شوې
شول په برخه زما ټول عمر غمونه

زما زړه کې مستي نشته جام رانه وړې
يار تش کړي تل د مينې ډک جامونه

1993/5/2

✵ ✵ ✵

# سندره

ځمه چې وګورم د جانان کلی
خدایه بیا ودان کړې هغه وران کلی

کله چې را یاد هغه یادونه شي
اوښکې مې روانې شي سیندونه شي
ډېر دی په هر چا باندې خپل ګران کلی

کړې پکې مونږه چې خاپوړې دي
اوس خو هدېرې ورپکې جوړې دي
پاتې شو هر چا نه خپل جانان کلی

نوم یې وته پور دی کونړونو کې
پروت دی هلته دنګو دنګو غرونو کې
دا کلی د یار محمد اجان کلی

خدایه بیا ودان کړې هغه وران کلی
2003/7/2
کوروایلر جزیره کې

# اروابناد ډاکتر کبیر ستوري

## تــه !

سودا اخیستی یمه څنګه به شي ستوري شمارم
خو کبیر ستوری پکې نشته له مداره وتی

دا د پښتون اسمان انګړ راته خالي خالي شو
زمونږه ستوری د یارانو له کتاره وتی

2006/5/12
جرمني، ویسلینګ ښار

* * *

# غزل

لپه رانه زدې کړه زما اوښکو ته
ګلې ما له چرته خندا نه راځي

ما د وير په چم کې اړولې دي
يوه شېبه خوښي هم په ما نه راځي

شپې ورځې رقيب له لاسه ګرانې دي
رحم خو د چا په هېچا نه راځي

وخت د مينې خوند په ولجه وړی دی
ياره تېر وختونه په تا نه راځي

2001/11/18
جرمني، کولن لانګل

✵ ✵ ✵

# غزل

لاړې پناه مې له نظره شولې څه دې وکړل
ګلې چې پاتې له ګودره شولې څه دې وکړل

لکه برېښنا غوندې له دې محله چېرې لاړې
رانه په کومه مسافره شولې څه دې وکړل

زما تنکۍ مینه دې ځان سره په سین لاهو کړه
نامردې ګډه بې ګودره شولې څه دې وکړل

د بېلتانه د سیند څپو کې به دې ګورم چېرې
کوم سمندر د سر سندره شولې څه دې وکړل

یار دې کوګۍ په تمه ناست دی چې به راشې کله
دومره زر ولې مروره شولې څه دې وکړل

2002/10/20
کولن راین باغچه

✲ ✲ ✲

✲

زور د خیرو دی ښکاري ګوتې له ماشې اېسته کړې
ایله د کلي شنډې توت کې څو مرغۍ کېناستې

زموږ فقیرې دوعاګانې هېڅ قبولې نه شوې
پردۍ پېرې بیا د خوارانو په بلۍ کېناستې

2002/6/25
جرمني، کولن

✲ ✲ ✲

ډېره موده کېږي ورته لپه د زارو نیسم
ښکاري پښتنه ده چې له میني نه انکار کوي

زلفې کړي خورې له قصده تورې شپې بیا راولي
پوه یمه نادودې د خوږې میني په یار کوي

جرمني، کلن ښار

# نابلده باد

خیر کړې ډوب شومه د اوښکو سمندر کې
کوم بانه رسا و پښتلی یم ځیګر کې

ورته سوچ یمه اخیستی دا به څنګ شي
کبرجن اشنا هېڅ نه راځم نظر کې

د ژوندون په ښو او بدو نه پوهېږم
تېر شو عمر مې عبس کنډو کپر کې

زور د حسن دې نادودې په ما وکړې
له دې کلي نه به کډه راپسر کړي

پرې چې وړي مې نابلده باد په کومه
دلته شپې د تېرېدو نه دي په شر کې

یاره ستا د اسوېلو پروا چې نه کړي
نور ګودر په غاړه مه ځه مازدیګر کې

2001/2/25، جرمني، راین

# غزل

څو لېوني سپي د خپل وران کلي کوڅو کې ګورم
کاروان د اوښکو په شلېدلو ګرېوانو کې ګورم

په نصيبونو راپرېوتې له اسمانه تهسه !
ستوری د بخت مو نن سبا په رالوېدو کې ګورم

چې په وهلو، ځغلولو مې څو ځل شړلی و
د وطن واګې نن د هغه چا راتلو کې ګورم

کيسې د ننګ او غېرت لاړلې په سين لاهو شوې
رېښې رېښې شمله مې نوره سوځېدو کې ګورم

تال بدل شوی دا نغمې را ته بدل ښکاري
دا ساده ګان بيا پردي ډول ته نڅېدو کې ګورم

ماتې شوې سر کې د پښتو او پښتونوالي لاپې
ژبه مگې هم په ګينګړو او مړه کېدو کې ګورم

له بې وسۍ نه به د يار سندرې ژاړې درته
چې خپل کاله کې ځان ورو ورو بې واکېدو کې ګورم

2003/3/12
جرمني، راين

# غزل

د زړه خبره مې په زړه پاتې شوه
مینه خوږه رانه په ثه پاتې شوه

د نیمو شپو ټپې وې ګرمې پکې
رانه د کور کلي حجره پاتې شوه

شرنګ د سېتار بغا د سره منګي نه
په غوږ مې هغه شان نغمه پاتې شوه

د چا د دومره ناروا لاسه !
رانه په خوله نیمه ټپه پاتې شوه

ما وې په غوږ کې به ثه وایي راته
ګونګۍ شوه یاره پټه خوله پاتې شوه

2002/10/24

کولن، راین

✵ ✵ ✵

# کوچۍ

خير کړې د مينې دنيا ورانه نشي
مينه کې څوک دې بې جانانه نشي

مه ځه د ښکليو په کوڅه زړګيه
چېرته خو پېښه درته ګرانه نشي

په ګرېوانه به دې ځي اوښکې لارې

مينه عذاب دې ګوره تانه نشي

بس دی چې يار زړه په ايلبند کې پرېښی
کوچۍ سره مينه په اسانه نشي

2002/6/19

جرمني، راين

# د جهان چم کې

وا ړوه د مینې کډه راشه د جانان چم کې
پرېږده اسویلي دې د غمونو او ارمان چم کې

هسې هم د غونډو زنو شنه خالونه توی شولو
چوپې تلوسې شوې مري ساه ګانې د زندان چم کې

کډې راپه سر شوې له مرګونو او ویرونو نه
ناست دي په اوږو راته درانه د بېوان چم کې

ګام په ګام یې سرې زموږ د خوار کلي چینې کړلې
ژاړي راته هر وخت د رنګ کلي یتیمان چم کې

خدايږده چې به شنې کوترې بیا زموږ په بام راشي
شور به د چونچڼو کله پورته شي دې وران چم کې

ځي په نابلده کندوونو قافلې یاره
هر چېرې د بېره شول افغانان ټول د جهان چم کې

2001/4/12

کولن، کوروايلر، جرمني

# غزل

په درنو سترګو درانه کتل کړي
جادوګره یا برېښنا ده رانیول کړي

څه کړې ورېږي ځواني ورته اوبه شوې
توري سترګې چې راواړوي خوړل کړي

په دې کلي کې اجل نیولي ده پر دي
په بڼو باندې رسا ورېشتل کړي

سره منګي سره ګودر ته مازدیګر ځي
دنګه غاړه ځي د زړګي په شان تلل کړي

سترګو یووړه لېوني غونډې ښکارېږي
لاس کړئ پورته که خدای یار ورسره مل کړي

2001/10/5
کولن، روګندرف

✵ ✵ ✵

# د هسپانيې سانسيبا ستن ته !

سانسيباستن د سرو ګلونو ښاره
د سيلانيانو د سيلونو ښاره
د تاترو او د بحرو وطنه
د ځګو غرو او ځنګلو وطنه

د ښاپېرو د اتڼونو ښاره
د سيلانيانو د سيلونو ښاره
ستا د ساحل د غاړو سرې بربنډې
په نرمو شيګو کې پرتې بربنډې

د لمباګانو ساحلونو ښاره
د سيلانيانو د سيلونو ښاره
دلته د پېره دي ښکلاګانې تاکې
سپينې کوګۍ څومره ارزانه تاکې

ښاپست کې يې د جنتونو ښاره
د سيلانيانو د سيلونو ښاره
يار د پامير له ګړنګو راغلى
ستا د ښاپست په اورېدو راغلى

يې په رښتيا د يادګارونو ښاره
د سيلانيانو د سيلونو ښاره

2001/8/4

هسپانيه

لکه ثاثکی عمر هسې راوربېږي
ژوند روان یو سمندر دی چې تېرېږي

چا لا ساه په خوښې نه وي اخیستلې
ور د مځکې ورته رپ کې بېرته کېږي

یاره دغه زموږ لاره ده روان یو
هر سړی له تورو خاورو لاندې کېږي

2001/9/23
جرمني، د کولن هدیرې ترڅنګ

# غزل

بانه دې رپي بيا څه چل دی ستا په سر اشنا
نه ښکارې ډېره موده کېږي په ګودر اشنا

پرهر پرهر زړګی مې نن سبا خو چوي درپسې
کړی زما په سينه تا د مينې کر اشنا

د اسوېلو بادونو يووړه د پګړۍ چرړه مې
غشي د مينې مې خوړلي په ځيګر اشنا

زما د غرونو په ځنګلونو باندې لوګه شوی
څو سوداګرو رانه لوټ کړلو هر غر اشنا

دغه نادودې تېروه په زړه بې وسه ياره
پرې چې پردي ملک ته چلېږي ستا نښتر اشنا

2003/12/24

✵ ✵ ✵

# پښتو ده

چې دا مونږ ولې د ثيرمه لېوني يو؟
ځانته پام نه کړو د هر چا خندني يو

خپل کاله کې اتفاق زمونږه نشته
سکني نه شو ټول عمر مېرني يو

چې ساتي ولس نفاق او تربګنو کې
تل له داسې مشرانو سپېلني يو

چرسو بنګو مو حجرو کې ډنډوکار دی
لاپو شاپو کې له هر چا مېړني يو

له ژوندون له پټه رازه خبر نه يو
تمدن نه يو په تېښته غرني يو

محتسب راته دوري په لاس ولاړ دی
يوازې مونږه يې مېندلي دهرني يو

جنګ جګړه او تربګني زمونږ پښتو ده
دې نړۍ کې همدا مونږ يوازيني يو

يو ورور بل ته کنو څاه دغه مو کار دی
ياره ټول عمر يو بل نه خواشيني يو

2001/5/2

جرمني، کولن

# احساس

د هنر د قاتلانو پېرې زور دي
کله خوند شته په شعرونو او غزل کې

عاطفې ټولې مړې نه نیول شوي
بې وسې رارسېدلي ده ازل کې

د نفاق اورونه بل نن کور په کور دي
د پښتون قافله پاتې ده منزل کې

لا په مخکې کړلېچونه راته شته دی
ارتقا مې د ژوند نه راځي اټکل کې

تش د خولې په لاپو شاپو به څه وشي
څو پېدا نشي احساس د زړه په تل کې

یو تر بله زاربدل چې ورکې نه وي
یاره خوند نه کړي خوبونه په څنګل کې

❋ ❋ ❋

# يکه زار

وبه خاندي سپورې شونډې وچ به ګړېوانونه شي
ژوند به ټوله مينه وي، ساندې به سازونه شي

بيا به عاطفې په کډه راشي خپلو مېنو ته
خوبن په په غلبېل سينو کې زړونه په ټوپونو شي

پورته به حجرو کې يکه زار غږ د ټپو شي بيا
شرنګ به د پېزيب سره د منګو او سېنارونو شي

غوڅې به لانجې شي په دې خوارو پرګنو کې تل
خپلو کې چې وژني دغه ټول به سره ورونه شي

بوخت به شي لګيا به شي هرڅوک د ارتقا په لور
دا د وطن شارې به د سرو ګلونو ټلونه شي

تاو به له څماونو نه ځوان په مېخانو کې وي
نه به وي يارانو کې يار پاتې به يې شعرونه شي

2002/9/5 کولن، راين جرمني

✵ ✵ ✵

زلمو زر شئ بیا ډوله ته غورزې وکړئ
وخت راغلی بیا مورچل ته د ختو دی

زړه توره د بابا درسره واخلئ
کنه نوم نشان مو اوس په ورکېدو دی

د پامیر له ګړنګونو پې نارې کړئ
موږ همغه پښتانه یو هېر دی نشي !

2001/10/18
کولن، جرمني راین
د کولن په ښار کې د افغانانو او المانیانو
په ګډه مظاهره کې

✵ ✵ ✵

✵

د ګلونو سره غونچه شه چې معطر شې
چې د ژوند په خوند او رنګ باندې خبر شې

ګناهونه دې له ږيرې نه څڅېږي
شېخه بس دی زیاتي کوز که له منبر شې

✵ ✵ ✵

✵

يو خُمار دی لګېدلی په دې چم کې
سوچه ږيرو اړولی مېکيدې ته

په قدم قدم کې ودرېدې شناختې
جنازې دي چې چلېږي هديرې ته

✵ ✵ ✵

# بلبله

بلبله ښکلې ترانې ووایه
خوږې د مینې افسانې ووایه

د ګل په مات ړندړ راواخله کیسه
سندرې ښې د زمانې ووایه

ساقي ثنګ لاس ترزنې بیا ولاړ یې؟
حال دې د ورانې مېخانې ووایه

دا د وطن کیسې دې هېرې نشي
خبرې ښې د ویرانې ووایه

د ګل په زېړه پاڼه لیکه یار ته
ورته دا تېرې کارنامې ووایه

✲ ✲ ✲

# ړنګ ښار

ځنګېدلی دی کوڅو کې نه ښکارېږي
ړنګ شه ښاره مېخانې درپکې نشته

غځېدلي دي کوڅو کې خُماریان دي
خُمان مات دي پېمانې درپکې نشته

د خزان دوړو بادونو کې پناه شوې
مینې لاړې یارانې درپکې نشته

له کنډرو دې راخېژي فریادونه
د بلبلو ترانې درپکې نشته

ستا په غېږ کې رقیب مینه د یار وسوه
خوند د ژوند او زمانې درپکې نشته

1990/3/5

# خواره واره

هره شپه خوشې بد خوبونه وینم
بیا په وطن کې مې جنګونه وینم

ددې بد بختو پرګنو په برخه
همدا جګړې او دا مرګونه وینم

دنیا وړه شوه انسانانو باندې
ځکه تېری، تجاوزونه وینم

دیموکراسۍ او آزادۍ په نامه
پکې اسلام ته کلک ګواښونه وینم

چې یې جهاد کړی په ضد ورسره
نن یې هغوی سره لوظونه وینم

بډې، رشوت یې کړو رواج وطن کې
هم مېخانې او ډک خومونه وینم

د یار په چم کې پردی ډول غږېږي
ورته خواره واره لاسونه وینم

2003/10/20
جرمني، کلن ښار

# غزل

شېخه دا څه کړې مېکدې په غاړه
درنه بېګاه دلته تسپې پاتې دي

ستا عبادت او د تسپو ټکا کې
ښکاري درنې دوکې پاتې دي

مسلماني دې خدا پرو شک ګڼمه
په خلکو هسې دې اړې پاتې دي

دا سرچپه کانې چې وشوې وايه
پکې اوس کومې مسئلې پاتې دي

خېر دی په کړو سجدو کې نشته
په خوله دې څو تشې توبې پاتې دي

پام چې منبر ته زياتي پورته نه شې
درته عبس دا چوپې خولې پاتې دي

په ګرانو لارو د اشنا کلي ته
يار ته مزلې ښې اوږدې پاتې دي

2005/12/9

جرمني، روګندرف

✲ ✲ ✲

# بې حیا

د فطرت په ښکلاګانو
تور نقاب دی راخورېږي

د نرګسو جنازې وړي
په شتاب دي راخورېږي

له وحشت او مصیبته !
ژبې ګونګې شوې په خوله کې

اوښکې واوښتې څپې شوې
سور دریاب شو راخورېږي

وړي اورونه په لمن کې
دوزخونه ورسره دي

دا دنیا ترې په لړزه ده
په رباب دې راخورېږي

د وختونو په سنګر کې
د ماشې په ګوته ناست دی

په جمله مسلمانانو
یو عذاب دی راخورېږي

دين مې نيسي له مرۍ نه
دی پخپله دی بې دينه

بې حيا د زمانې دی
ډېر بې اب دی راخوربږي

کافر ديو دی د وختونو
ياره ځئ چې پسې پاڅو

چې مرۍ يې وچه نکړو
لوی ښامار دی، راخوربږي

2002/10/5، جرمني کولن

* * *

# غزل

نادودو مې جانانه ټول محل وسوځاوه
د وخت څو لېونو مې تور وربل وسوځاوه

ګوګل نه مې لوخړې د باروتو پورته کېږي
هر کور او کلی ښاریې په څو ځل وسوځاوه

ناولو تورو ګوتو مې ټیکری ریښې ریښې کړو
تا ولید چې ظالم مې د سر ګل وسوځاوه

په ږیره دې اور پوري شه د سپینو جامو غله
تا ولې دا زما ښکلی کابل وسوځاوه

ګرېوان ته مې څه تور او سره لاس ونه رااوږده شول
په ما یې دا خپل ځان په څه چل ول وسوځاوه

د ژوند په کڅ مې یاره سرې سکروټې رااورېږي
راغلې وچکالي ده زړه مې جل وسوځاوه

1993/2/5 جرمني، کولن

✵ ✵ ✵

پخپل لاس مو د اوطن کړو کنډواله
يو تر بله وکړه مونږ مقابله

تباهي مو خپل غريب وطن ته راوړه
اوس حېران يم چاته وکړمه ګېله

چې هرڅه مو ټول په سيند باندې لاهو شول
شوه د يار پکې رېښې رېښې شمله

2003/4/9

جرمني، کولن

# سندره

د عبدالله مقري د یوې سندرې په پیروۍ

تورې ګورګورې، شنې ممانې د خپل غره راوړه
ماته د کونړ له سینده اوبه راوړه

خپل کور او کلی مې یادیږي
زړه مې نری خوړیږي
لپه توتان د توت له څانګې راته سره راوړه
ماته د کونړ له سینده اوبه راوړه

په ما مې خپل وطن ډېر ګران دی
پردی وطن راته زندان دی
سابه سوکړک ورسره خپل د تناره راوړه
ماته د کونړ له سینده اوبه راوړه

زما د جګو غرو وطنه
ګران یې خپل یار باندې هرڅه نه
جانانه راشه قدمونه دې درانه راوړه
ماته د کونړ له سینده اوبه راوړه

2002/2/16

جرمني، راین

* * *

# د بون پرېکړه

قافلې د اوښکو ځي راځي چلېږي
ماته شوې ګرېوانه ته سپينه لاره

هر ګوګل نه شنې لوخړې پورته کېږي
په سينه کې زړګی چوي له انتظاره

نن جرګه د پيترسبورګ ماڼۍ کې کېږي
پاچا کېږي ظاهر خلک وايي دوباره

دغه دور عجيبه د زمانې دی
هر افغان شو خپلې خاورې ته بې اتباره

تل په تاسې له بهره داسې کېږي
دي وتلي هر څه ستاسې له اختياره

سرنوشت مو په پردي وطن جوړېږي
افغانان نه لرې د ښه بله چاره

ياره خپلو کې به هېڅکله جوړ نه شئ
ستاسې برخه له ازل نه داسې خواره

2001/11/27

بون، پيترسبورګ

✵ ✵ ✵

# ازمېښت

د خپل وطن په مینه مست شه مېخانې پرېږده
مات کړه زاړه لوزونه پټې یارانې پرېږده

تش په نامه د سپینې خولې قلنګ ته مه کېنه نور
وکړه پښتو باندې کسم دا بهانې پرېږده

د خپلې خاورې ارتقا نېشه پیدا کړه سر کې
زړې وعدې نورې د تېرې زمانې پرېږده

د ساقي ست ته مېخانه کې زیاتې ونه درېږې
د وخت پیکه دا ډکې پېمانې پرېږده

ګړېږه سم په خپله ژبه باندې مه شرمېږه
د بل په ژبه د پردیو ترانې پرېږده

هر څه نه ستا لپاره نن ملي وحدت ضرور دی
نورې قاتلې تربګنۍ او افسانې پرېږده

خامخا ځې به د سیالۍ میدان کې نورو سره
پښتونه واوره دا مرض د ځانځانۍ پرېږده

هله به وګټې خولګۍ د قربانۍ ازمېښت کې
وایي یار مینه کې زوړ دود د زمانې پرېږده

2002/12/5

# سترګې پټوم

مه راچوه لاس پربېږده په غرونو ځم
تللی چې جانان په هغو پلونو ځم

هېڅ د اسرې ځای مې پاتې نه دی نور
ډک زړه له غمونو او دردونو ځم

دا وطن د نورو بلاګانو دی
نور له دې جنګونو او مرګونو ځم

بل چېرې تکل مې کړی دا ځلې
سوچ یمه اخیستی په فکرونو ځم

ځان له کوه قافه هم وراړوم
نېغ پاس د پامیر په ګړنګونو ځم

یار ته به مې پټ په غوږ کې ووایې
سترګې پټوم له وحشتونو ځم

1999/9/6

# په وچو شونډو

توره قبا ده راخوره چرته رڼا نه راځي
د هجر شپه لاړه اوږده شوله سبا نه راځي

لارې سرې شوې دې چلېږي پرې تل سرې جنازې
قتل دی ګډ کلي کې هېچا ته خندا نه راځي

ګلونه لو دی پسرلیه هډو را چې نشې
خندا په وچو شونډو دلته د سارا نه راځي

د خپل یاغي نصیب پوښتنه به د چا نه وکړم
د خوښۍ شپې جانانه کله په ما او تا نه راځي

زما وطن باندې له پاسه سره اورونه اوري
رحم په دې غریب ولس باندې د چا نه راځي

غونچه د ګلو د شهید جانان په قبر کېده
یار دې د عمر مساپر شو کله بیا نه راځي

2001/4/20، جرمني، روګندرف

سیلۍ لګي د وطن د ناوې شال وړي
پښتانه زلمي جګړې نه وزګار نه شول

خبر نه دی یو ویشتمې پېړۍ راز نه
په ټکر د حوادثو هوښیار نه شول

2001/11/24

جرمني اورینګن

* * *

چې جدا مې د خوږې مینې جانان شو
زړه کې پاتې مې د ټول عمر خپګان شو

ساه نیولی اوس پردو کوڅو کې ګرځم
راته ښکاري یاره ژوند دې په المان شو

2001/5/20

جرمني، د کولن بانهوف څنګ ته

* * *

## د اروابناد روهي د لسم تلین په غونډه کې

مور به د هاغه په یاد د اوښکو ډیوې بلې کړو
تل به د هاغه د اند پښنو په لور قدم اخلو

جوړې به د هاغه چا یادونو ته غزلې کړو
نوم به د "روهي" د ادب ستورو سره سم اخلو

2006/5/13

جرمني، مونشن ګلادبخ

# دلته

دلته نوره ګرانه ګوزاره شوله
ځمکه هم له قهره راته سره شوله

ښه جنت وطن راته دوزخ شولو
رنګه د کابل مې منظره شوله

لوند ګريوان ځنډمه له دې ملکه ځم
ورکه مې هر چا پورې اسره شوله

ډک شو ملک له نورو بلاګانو نه
توره لړه راغله راخوره شوله

وچ شولو فصلونه وچکالي راغله
ښکلې شين وطن مو سواره شوله

ډزې دي، مرګونه دي، لوخړې دي
اوښکې راورېږي فواره شوله

خير غواړه اوس ياره په پردي وطن
لاړه معشوقه دې اواره شوله

1992/2/6

براووايلر، جرمني

✵ ✵ ✵

# غزل

چې ناځاپه مې د چا په مخ نظر شو
دا پښتون زړه مې ګوګل کې لر او بر شو

چور به جوړ د چا د حسن په بازار شي
که روان د اسوېلو مې دا لښکر شو

ستا د مینې پاس مورچل ته به درخېژم
په پرواز که مې د مینې بال و پر شو

زړه به پانې پانې ستا په قدم کېږدم
د راتلو دې که بیا د ېخوا ته خبر شو

په سپېره دښته د ژوند به ښکلا راشي
تروږمۍ پسې که دا ځلي سحر شو

د غاټولو به ټلونه شي ډاګونه
که کوشیر زما د مات زړګي پرهر شو

بیا به جونې د منګو په سر کتار شي
یاره جوړ که ستا د کلي زوړ ګودر شو

2003/2/30

✲ ✲ ✲

# غزل

زلفې دې خورې که راته وخانده
ما خاورې اېرې که راته وخانده

سپین مخ سره تور وربل دانه وانه
جوړې منظرې که راته وخانده

راکاږه یو غشی په سینه زما
زړه خو مې ارې که راته وخانده

ډول ته دې دومره حاجت نشته دی
شونډې نرۍ سرې که راته وخانده

بیا ولاړه او سه په ګودر باندې
پټې اشارې که راته وخانده

مړي یار نه سپینې لېچې تاوې کړه
سترګې دې راسرې که راته وخانده

2003/3/15

✲ ✲ ✲

# یادونه

خور مې په وربل کړه چې رومال شمه
یا به دې د سپینې زنې خال شمه

ما په شنو یادونو زړه تړلی ستا
خوا ته مې نزدې کړه چې وصال شمه

نیت مې کړی دا ځلې چنې ته ستا
غواړمه لوګی دې د جمال شمه

ځای راته د زړه په کور کې راکړه ته
پرېږده چې دا ستا د مینې سیال شمه

یا مې لکه ګل وربل کې وټومبه !
نښه د سپرلي او نوي کال شمه

هله به دا ټول یادونه ولیکم
کله چې شاعر شمه ، لیکوال شمه

2002/5/31، راین

✲ ✲ ✲

# د وطن ترانه

ګران دی په موږ خپل د شنو درو وطن
ښکلی دی زموږ د لوړو غرو وطن

دا د ننګیالیو ابدالیانو کور
غېرو نه ساتلی افغانانو کور
دی د اریایانو د پلرو وطن
ښکلی دی زموږ د لوړو غرو وطن

دلته چې کم هر جابر راغلی دی
بېرته شرمېدلی دی وتلی دی
دا د اتلانو مېړنو وطن
ښکلی دی زموږ د لوړو غرو وطن

ځي رانه پوهېږمه دا خپل کلتور
رابه شي افغان کور ته د بل کلتور
شي به بې حیا دا د ابرو وطن
ښکلی دی زموږ د لوړو غرو وطن
تاسې ته معلومې د جګړو کیسې
دې غریب وطن کې د پردو کیسې
هر چا نه ساتلی پښتنو وطن
ښکلی دی زموږ د لوړو غرو وطن

بیا ځلي انګلیس او امریکا راغله
یو ځای ورسره هم اروپا راغله
ځي زموږ دلاسه په ورو ورو وطن
ښکلی دی زموږ د لوړو غرو وطن

نېغه چې شمله نوره په سر نه کړئ
لاپې به نور بس د لر او بر نه کړئ
نشئ نور ساتلی د پښتو وطن
ښکلی دی زمونږ د لوړو غرو وطن

ملک کې د نفاق اور کرل شوی دی
هر افغان نور ژوبل شوی دی
شو یاره وېجاړ د ښاپېرو وطن
ښکلی دی زمونږ د لوړو غرو وطن

2005/11/26، جرمني، کلن راین

# غزل

را به شي سپرلی دا سپېرې د ښتې به ګلونه شي
څڼو کې د پېغلو به ټومبلي زېړ ګلونه شي

پورته به نارې د مستو زرکو شي په غرو کې بیا
هره خوا خورې به ښې ورېمې د ګلابونو شي

لرې به خورې شي هره خوا به شي رڼا رڼا
بیا به په څپو څپو د ټول وطن سیندونه شي

ګلې ته هم څنډ وهه ګردونه تورو زلفو نه
پرېږده چې کاکل دې په سپین مخ بیا ولونه شي

توري به ګورګوري شي ممانې به راورسي
شنه اسمان د لاندې به د زاڼو کتارونه شي

شپون به په شپېلۍ باندې هم خپلې ګوتې ټینګې کړي
ورکه به چوپتیا شي هرې خوا ته به سازونه شي

ژڼکي به ډوله ته له میدان نه دوړې پورته کړي
یاره ښه به ګرم د یارانو مجلسونه شي

2003/4/16

جرمني، کولن

❋ ❋ ❋

# پاریس کې

څومره په پاریس کې ښکلاګانې دي
ښکلي محلونه خنداګانې دي

هره خوا چې ګورې ښاپېستونه دي
عطرو خوشبويې پکې روانې دي

دی خو په رښتيا د ښاپېرو وطن
پېغلو کتارونه لکه زاڼې دي

ژوند دی په پاریس کې ټوله مینه ده
ځینې زړونه دلته پاڼې دي

ګرځي ببر سري لېوني ځوانان
ډېرو ګرېوانونه تاڼې دي

شنې کروندې هرې خوا تاکونه دي
سرو "واینو" چینې ورکې روانې دي

لوړ شانې کلتور لري همدا خلک
ناسته پاسته یې څومره په ښه شانې دي

ته به وایې چې ښکلي ټول "لېون" کې دي
دې ښار کې د مینې سوداګانې دي

يو بل ته د سرو شونډو ستونه دي
سپينې خولګۍ ښې پکې ارزانې دي

وختم پاريس کې د "هيفل" په سر
ټول ښار کې څه ښکلې رڼاګانې دي

نوی موډ فېشن کې ګوري هر سړی
ياره يارنې څومره اسانې دي

2000/6/15

پاريس، فرانسه

# د اختر سندره

ګرم په حجرو کې مجلسونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

راشه درشه ښه وه ما او تا کره
زه به درتلم تا کره، ته به ما کره
ډک به د زلمو نه وستلونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

مینه وه یو بل نه ځارېدلو به
هر اختر حاشر کې ټولېدلو به
جونه، هلکان به وو ټالونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

چا سره ددې حالت سودا نه وه
دغسې نادودې ناروا نه وه
ټول افغانان یو بل سره ورونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

ډکې ښې د پېرې حجرې د کلي وې
لارې شنو فصلو کې هر خوا تللې وې
یو بل ته د هر چا ښه نیتونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

خلک به وو پنډ د جومات غاړو کې
خوښ وو ټول په هغو شاړو باړو کې
هغه ساده ژوند کې ځه خوندونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

خدا پېږو هغه وخت کې څومره مینه وه
ټولو په یو بل باندې لورېینه وه
ښه ټینګه پښتو وه، کلک لوظونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

هر کلي کې ولې د حاشر ورځې
وې به په زړه پورې د اختر ورځې
بوغظ نه ښه پاک سینو کې زړونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

پاک اسلام او ښه مسلماني به وه
ډېره غریبي خو ارزاني به وه
هر څه پرېمانه ټیټ یې نرخونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

هر ملا امام خپل امامت کاوه
خلکو ته یې وعظ نصیحت کاوه
نه دا تجاوز او سیاستونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

اوس ګورم بدل رانه دستور شولو
پاتې کور او کلی هم کلتور شولو
څومره ښه زمونږه رواجونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

یاره زړه دې وران دی وته پور پسې
خامخا ورځې به ته ضرور پسې
ګران دربانـدې هغه خړ کورونه وو
ښکلي مو د کلي اخترونه وو

* * *

# غزل

پام کوئ زړه کله ونه تړې بد رنګو پسې
ملګرو لاړ نه شئ هېڅکله په بد رنګو پسې

د بې ازمېښتو سره ګډ په لاره مه ځئ چېرې
زړونه ونه بېلئ د چا په شرنګ او پرنګو پسې

پردي وطن په ښکلاګانو باندې سود نه کېږي
زړګی مې وران دی د وطن غرونو ګړنګو پسې

پیکه ښا بست پورې زړه مه تړئ بلا پسې که
د یار زړه تللی د خپل کلي ړنګو دنګو پسې

2003/11/2
جرمني، کلن روګندرف

* * *

# بېنوا

ثه وایې جانانه چې له چا نه ځم
بس دی نور دې کلي نه ګرانه ځم

اور یې راته مینه باندې پورې کړو
اوښکې توېوم له خپګانه ځم

تمه نوره دلته د ژوند نشته دی
وینې د زړه خورمه له ارمانه ځم

لاړ شمه په کومه نه پوهېږمه
یاره بېنوا له کابل جانه ځم

1990/7/29

* * *

# دوست ته

ډېره موده کېږي حال دې نه راځي
ښکاري چې له مانه ځورېدلی يې

سترګه مې رپېږي رب دې خير کاندي
چېرته کوم عذاب کې کړېدلی يې

مانه به ګېله لرې پوهېږمه
حق دې دی په ما که قهرېدلی يې

ستونزې لرم زه هم په پردي وطن
ته به هم له ډېرو ژړېدلی يې

وي به راشه درشه ستا له چا سره
اوس به په دوستۍ ښه پوهېدلی يې

ښاد اوسې، آباد اوسې پردېس اشنا
تل د يار په زړه راورېدلی يې

2002/8/6، جرمني، روګندرف

# غزل

ماته ښا یېست کې لکه ستوری د اسمان ښکاري
په ټولو ښکلیو کې مې ښکلی خپل جانان ښکاري

لکه شبنم په سپین سحر د ګل په پاڼو کې پروت
لېمو کې سرې سترګې کسم دُرو مرجان ښکاري

د بل د دنګو ونګو ښکلو ماڼیو ما له څه خیر
نړۍ کې ښه راته دا خپل افغانستان ښکاري

بېرته شوم پاتې د ژوندون د قافلې نه خلکه
ځکه مې تل په اوښکو لوند څېرې ګرېوان ښکاري

د ختېو خپل کلي ته ځمه که پرې سوله راغله
یاره پردي وطن کې ژوند راته زندان ښکاري

2002/10/28،
د کولن جګې کلیسا ترڅنګ

✲ ✲ ✲

# غزل

د شمال له لوري باده لاړې تېر شوې
اوس رالوتی د بحرونو لوی توپان دی

تور کارغان هم برساتونو سره لاړل
نظر موږ ته بدل شوی د جهان دی

د بخت ستوری راتوی شوی دی زمونږه
قهرېدلی یواځې موږ باندې اسمان دی

شیخ هم نور د مېکدې اجاره دار شو
د جامونو تشول یې ډېر ارمان دی

هغه تشې وعدې لاړې ټولې دروغ شوې
پې تېروتی د مودو افغان دی

مینه مه کوئ ګناه ده واعظ وایي
رانیولی یې دا وعظ راته وران دی

یاره هغه سره کافر یې نن دوستان دي
چې وران کړی یې زموږ افغانستان دی

1995/11/3

جرمني، کولن

✲ ✲ ✲

# سلګۍ

مه کفن ښېرې نکړې غوږ کېده ګېلو ته زما
ساه راپکې ده خطا نشئ اسویلو ته زما

خوا ته راوړاندې شه وخت کم دی چې څه وایم درته
د پښتونوالي سبق ووایه نسلو ته زما

نشو مه سیال زه په نړۍ کې د خپل سیاله سره
شرم دی ټول جهان حېران دی کړو وړو ته زما

د لیلی دښته باندې کر د ګلو شوی پام کړه
خیال کړه قاتل د ګلو پرې نږدې غونچو ته زما

رښتیا پښتون شه دا خپل سر لږ ګرېوانه ته ټیټ کړه
ځان دې ښه وپېژنه زیر شه دې ترڅو ته زما

پرې چې زمونږ په شنو ځنګلونو کې بازان الوزي
پردي کارغان به زیاتي نه پرېږدې، دې غرو ته زما

نورې خبرې را سره دي خو سلګۍ مې راغلې
د یار د مرګ پېغام اوس یوسه پرګنو ته زما

2003/7/20
د کولن د هديرې ترڅنګ

زه به دوعا کوم جانانه چې ته روغ پاتې شې
د ښکلو چم نه عزرایل په ګوتو ساه وباسي

د چا څپېړې د مغرور مخ هسې شين وړاوه
ټوله نړۍ ورته د ښمنه زور له ما وباسي

2001/10/18

جرمني، کولن

د شهید وطن په چېغو بېګا وینښ شوم
ویلې بیا رانه تاو شوی تور ښامار دی

ډک له زهرو توغندي راباندې اوري
یوویشتمې پېړۍ د استعمار دی

2001/10/25

جرمني، روګندرف د شپې درې بجې

# غزل

د تورو شپو په تورتمونو کې زخمونه شمارم
خزان وهلي بڼ کې ګرځمه ګلونه شمارم

د ژوندانه شېبې مې شمارم د وصال په تمه
د خپل زخمي وطن ټپونه او فريادونه شمارم

نسل د ډزدی راګډ شوی دلته شپې نه کېږي
وتې ساه ګانې دي هر چانه تش مړګونه شمارم

ښکاري مرغان مې د وطن په عربانو خرڅ شول
غرونه، ځنګلونه ځوانيمرګ شول نښترونه شمارم

د سرو منګيو په کودړو مې نظر پرېوتو
په راکټونو لګېدلي ګودرونه شمارم

زور د ګيدړو دی نن ياره د زمرو وطن کې
پرې چې د خوارو غرځنيو وربلونه شمارم

2000/3/5، جرمني کولن

# غزل

جانانه وکړه راته ښه سپینه صفا خبره
نه به مني مینه کې پام کوه د چا خبره

د حسن زور دې زړه خو بل ته ورکولی نشم
پرېږده چې کلي کې شي پاتې زما او ستا خبره

د لېمو غشي ګوزاره کله زما لوري ته
راته کوه ګرانه په مینه او خندا خبره

پام چې پېرزو د سپینې خولې دې په یار کمه نکړې
مدام کوه ورته په غوږ کې د وفا خبره

2001/6/27،
هالنډ، فینندال

✵ ✵ ✵

# غزل

زه په ګرېوان د لېونو مَېن يم
لکه بلبل په پسرلو مَېن يم

ګل به شم و مې ټومبه څڼو کې ستا
د تورو څڼو په قودو مَېن يم

ټال راکړه زلفو کې مې وځنګوه
زه دې د زلفو په ټالو مَېن يم

سودا اخيستی يمه څنګه به شي
د مړاو سترګو په کتو مَېن يم

پېرزو د سپينې خولې دې کمه نکړې
يار ه دا ستا په شونډو سرو مَېن يم

2001/6/27،
هالنډ، فينندال

مینه ښکلو سره تل کوه ثواب دی
واعظ وایي پام کړه مه چې لوی عذاب دی

یه د مینې محبت نه چور منکره !
څه په دروغو دې اغوستی سپین نقاب دی

خپلو مړو کړو، پردو تېرېستو له خیرمه
په دې سیمه نن راغلی سور سېلاب دی

هر چا خپله وسه وکړله په مونږه
یاره موږ ته دا جهان ټول په رباب دی

2004/2/5
کلن، روګندرف

✲ ✲ ✲

# غزل

حالات خراب شولو جانانه وايه څنګه به شي؟
د زړه دنيا شوه زموږ ورانه وايه څنګه به شي؟

لارې نيولي غمازانو راشه درشه نه شته
اوس نو پوښتنه وکړو چانه وايه څنګه به شي؟

شېخ د جنت په تمه ناست دی هڅو سوچ نه کوي
په موږ يې مينه کړله ورانه وايه څنګه به شي؟

لو د سرونو دی ګڼ شوی چې به نور څه کېږي؟
کله به شي په موږ اسانه وايه څنګه به شي

دې پښتانه غرور له لاسه هر څه کېږي په موږ
سخته په موږ ده له هر چانه وايه څنګه به شي؟

چو په خوله اوسه په المان کې ياره لاپې مه کړه
تللی وطن اوس ما او تا نه وايه څنګه به شي؟

2003/7/2، جرمني، کلن

# سندره

تېر راته له ځانه دې جانان زما
ګران راته هر چا نه دې جانان زما

دومره خپل ښاېست ناز و ادا سره
هسې مهربانه دې جانان زما

مانه يې زړګی لا پخوا وړی دی
ښکلی خو بې شانه دې جانان زما

لوظ يې د مينې يار سره کړی دی
څومره خرامانه دې جانان زما

2003/3/6
جرمني، راين

❋ ❋ ❋

# انګلیس او امریکا ته

احساس د پښتونوالي مې په شور راغلی دی
یه خلکه زوړ دښمن مې بیا په کور راغلی دی

پښتون د توري شرنګ نه لاتراوسه په لړزه دی
خو دا ځلې د ټول جهان په زور راغلی دی

زما په کنډوالـه وطن بمونه راوریږي
د ټولې دنیا زړه کې راته تور راغلی دی

رښتیا وایمه یاره مونږه خپله ملامت یو
د خپل لاسه دې وطن ته اور راغلی دی

2001/10/7
په هغه ورځ، چې امریکا په
افغانستان بمونه اورول

✲ ✲ ✲

# اسمعیل یون ته

## اسمعیل یون چې کله المان ته راغلی و

ته په خیر راغلې قدردان اشنا
یو څو ګېلو ته غوږ نیوی شې که نه؟
تل دې ژوندی یې راته ګران اشنا
د وران وطن کیسې کوی شې که نه؟

ستا د سوري ګوګل په شانې زه هم
د زړه په سر باندې داغونه لرم
زه هم د خپل وطن په غم اخته یم
کړمه فریاد ژور زخمونه لرم
یه رنځېدلی پرېشان آشنا
زما په درد څه پوهېدی شې که نه؟

هرڅه په پردي دي دا چې وینې دلته
سود پرې زموږ د زړونو کله کېږي
دا ارتقا د بل د متو زور دی
دغه کارونه په فکرونو کېږي
موږ یو په ځان پورې حېران آشنا
څو اسویلي درسره وړی شې که نه؟

ژړا مرګونه به لیدلي وي تا
هم به دې ښې بلا سلګۍ راوړي
دا کوم نصیب یې راوستلی دلته
ګیلې دې ښې دلۍ راوړي
پښتون کاروان پسې روان آشنا
کله منزل ته رسېدی شې که نه؟

منې چې دې د ښاپېرو وطن کې
د ماتو هیلو په بستر پراته یو
دغه جنت نورو جوړ کړی ځانته
مونږه سوالګر د بل په در پراته یو
نشته حاجت د زیات بیان آشنا
په هرڅه دلته پوهېدی شې که نه؟

هغه واعظ خو سور کافر وخوت
هغه جهاد هغه اسلام څه شو؟
په تش وعدو یې تېر ابستلي ولس
د دوی جهاد هغګه مرام څه شو؟
خوري قسمونه په قرآن آشنا
دا حقیقت خو اورېدی شې که نه؟

ستا د تاریخ افتخاراتو څلی!
د چا په لمسه څو چړیانو مات کړل
څومره تالان چپاولونه وشول
کلي ښارونه اورپکیانو مات کړل
مونږ ته دې ټول جهان حېران اشنا
دا مونږ سپېره راغونډوی شې که نه؟

ستا وچو شوندو راته غوړ کې وویل
بیا کوم جابر زما په کور راغلی؟
ده بې وسي مې څه کوی نشمه
زوړ استعمار مې بیا په کور راغلی
اوس به کړو څه اسمعیل جان آشنا
یار سره ته پاتې کېدی شې که نه؟

2002/12/10

جرمني، کولن

✵ ✵ ✵

# غزل

غلی به یمه خو په زړه باندې توپان لرم
سوری، سینه باندې زخمي شانې ارمان لرم

د یوه بانه اشاره ستا راته خروار ښکاري
کمی مې نشته وایم ځانته لوی جهان لرم

دا غمازان د محبت مې ستا له میني باسي
خیر دی په زړه خو ستا د مینې لوی فرمان لرم

دې پښتانه سر نه مې څو ځلې شمله لو ېدلې
یو قدم مخکې نشم تلای د ېر رقیبان لرم

کله دې شوي د زور کلي پښتانه وایي دا
په ټیټ سر نه یمه بلد پښتون ایمان لرم

د زړه تاخچه کې مې خو ستا د مینې پټ خوندي دی
تا سره یاره څو مره ټینګ عهد و پېمان لرم

2002/6/2، کولن، روګندرف

# غزل

نېغه راروانه زوروره ده
سترګو ده اخیستې له نظره ده

راغله زمونږ چم ته کومه زاڼه ده
چرته سېل نه بېله لره بره ده

هغه ده زاړه چېنار کې کېناسته
ښکاري راته غومبر کړي کوتره ده

دلته مرغان ډېره موده نه راځي
پاتې دا د وخت ښکاري له شره ده

ماته ښاپېرۍ د کوه قاف ښکاري
یا د پامیر زرکه سترګوره ده

لولپه دې نکړي یاره پام کوه
ډېر ګمان مې کېږي چې کوډګره ده

2003/6/3

# غزل

خوله ماتېږي په رښتيا رښتيا ويلو
چې دا کېږي دلته نه دي د ويلو !

په ټوپکو هرڅه کېږي منطق نشته
دا وګړي دي اخته په قتلولو

د افغان زړه عاطفې نه خالي شوی
سترګې نشو د خپل ورور په ښخولو

چې د چا په قام کې مشر پاتې نشي
وي به یاره د هر چا د غربولو

2002/2/20

جرمني، کورواېلر

❋ ❋ ❋

# غزل

دښتې شوې بورې هغه تورې شان کېږدۍ نشته
مينه مې پاتې شوه په دښتو کې کوچۍ نشته

ټوله صحرا د هېبتي انګازو ډکه شوله
رمې شپنو سره پناه شولې شپېلۍ نشته

د ارمانونو غوغا ګډه ده د وير په کلي
وخت کړو تباه دې زمان په شان چلۍ نشته

زانو غړۍ دي اوږدې کړي خدا بزده چېرې لاړې
د غرو لمنو کې اوس زرکې او سيسۍ نشته

لور د هر چا په لاس کې وينم ځې د ګلو لوته
غرونو کې هم هغه نښترې او څېړۍ نشته

ډکه وياله به کلي منځ کې شنو فصلونو ته تله
چې ښکته پورته پکې تله هغه هيلۍ نشته

،2001/3/8
د راين په غاړه، خپله باغچه کې

# غزل

جانانه ستا د وران کلي کوڅو ته يم راغلی
راوادې ړوه سترګې څو ګېلو ته يم راغلی

ربابه ستا په ډډ کې بيا سور اور دی لګېدلی
د ړنګې حجرې څنګ له څو تپو ته يم راغلی

ښکاري مې د کاله کوترې غومبر غلي کړي
ګوګل مې لمبه کېږي اسوېلو ته يم راغلی

ساقي دا ځلې خير دی ما د خوم په خوا کې پرېږده
يو ګوټ باندې څه کېږي سم غوپو ته يم راغلی

ما بې له هغه ځان، له خپلې مينې لوړی کړی
دا مينه پښتنه ده زه پښتو ته يم راغلی

د سرو شونډو په ياد مې خولګۍ وچه کېږي
طواف کړمه له شمعې سرو لمبو ته يم راغلی

راتول د اوښکو څاڅکي کړه ډنډونه په لېمو کې
د يار د مړاو اوښکو څڅېدو ته يم راغلی

2002/5/9

جرمني، کولن

✵ ✵ ✵

# تور چم کې

اوښکې ګرېوانه باندې روانې شوې
شپې ورځې په دې وطن کې ګرانې شوې

خپل او پردي يو بل سره دښمن شولو
هيلې په دې ژوند پورې حېرانې شوې

ټولې لاپې شاپې سر کې ماتې شوې
ګډ په وير شهيدې ارواګانې شوې

ننګ او غېرت تللی ککرو نه دی
تورچم کې سوالګرې مې بيبيانې شوې

لاس ترزنې کېناوه حالاتو يار
پاڼې د تاريخ يې تاڼې شوې

2002/1/3،
کولن راين

✵ ✵ ✵

# غزل

وګنډه خپل زړه دې زما زړه سره
څه وکړم دې څيرې ګرېوانه سره

څو پورې به دا سې لېونی ګرځم
دا به څنګه ښه شي چې شو مله سره

غشي مې په زړه رسا خوړلي دي
مړيمه قرانګو يوه کاته سره

چېرته مې له ځانه پام کړه بېل نکړې
تل به دواړه کړو د زړه خواله سره

غوږ کې د يار دا خبره ونيسه
کله زړه ښه نه کړې بېلتانه سره

1382/2/4

راين، جرمني

✲ ✲ ✲

# غزل

ستوري به څه کړو چې په سر زموږ اسمان نشته
زړونه لرو مينه کولی شو جانان نشته

د ښو غشو دې سينه سوری سوری کړه راته
په زړګي سخت اشنا په ما باندې خپګان نشته

مينې ته کله غمازان مونږه پرېږدي کلي کې
کوڅې دې شاړې پکې هغسې ياران نشته

هم پښتنې بيبيانې چېړ غواړي پردو کوڅو کې
پخپل وطن يې چرته کور کلی ودان نشته

هر چا په مونږه باندې ښه دا خپله خوا يخه کړه
د رقيبانو زړو کې پاتې اوس ارمان نشته

د بې وسۍ اسويلي ياره ستا له خولې نه خېژي
دومره رټلی چېرې خدابږو ستا پشان نشته

2002/11/6، د کور وايلر جزيرې

# داغونه

چې په زړه مې راوړېږي خود به ژاړم
د وطن د ګوګل سره پرهرونه

د کونړ د غرو نښترې راته ژاړي
خپل پردو پسې رااخیستي دي تبرونه

د افغان ټوله ملي شتمني لوټ شوه
د پاریس په بازار خرڅ شول لعلونه

ځئ مرغانو ځالې بل وطن ته یوسئ
مور په نورو دي پلورلي ځنګلونه

ژوند مې کلک رانیول شوی له مرۍ نه
رااوړېده شول د هر چا ورته لاسونه

نازل شوې مې په کورلویه بلا ده
له پخوا نه یې چیچل راته غابښونه

اوس نو سر له غره سره نشم جنګولی
د یار پاتې شول په زړه سوي داغونه

2001/8/17
کولن، جرمني

✲ ✲ ✲

# پښتانه

که ټول يو شئ پښتنو ښه به درانه شئ
په پښتو وکړئ کسم چې پښتانه شئ

د مودو قبيلوي لانجې کړئ غوڅې
د پردو لارو نه بس دی راستانه شئ

ليک او لوست پخپله ژبه باندې وکړئ
په پردۍ ژبه تروتي غوندې رانه شئ

علم و فن باندې به خلاص شئ جهالت نه
زياتې شرم دی چې وروسته له چا نه شئ

يار کړي تاسو ته منت پښتنو ورونو
وکړئ ځان سره لږ سوچ بې حيا نه شئ

2005/6/2
جرمني، کولن

✵ ✵ ✵

# د محمدا جان یار چاپ شوي آثار

| | | |
|---|---|---|
| 1. | کوکارې | شعري ټولګه |
| 2. | سره ډولۍ | د لنډو کیسو مجموعه |
| 3. | د کونړ تاترې | تحقیقي او تاریخي اثر |
| 4. | ویر | شعري ټولګه |
| 5. | تړلې کڅوړه | د لنډو کیسو ټولګه |
| 6. | د لیلی دښته | ناول (سترګو لیدلی حال) |
| 7. | څانګه | ناول |
| 8. | هوسۍ | ناول |
| 9. | په قربان | شعري ټولګه. همدا آثر |

## چاپ ته چمتو اثار

| | | |
|---|---|---|
| 10. | ګلاب او پرښته | ناول |
| 11. | سفرنامه | سفرونه |
| 12. | کلونه تالانونه | ناول |



محمدا جان یار د عبدالله جان زوی، د کونړ ولایت د وټه پور په کلي کې په ۱۳۲۸ه ش کال کې زېږېدلی دی. په خټه د مامونډو میرجانخېل پښتون دی. لومړنۍ او منځنۍ زده کړه یې په کونړ کې او لوړې زده کړې یې د کابل پوهنتون د تاریخ او فلسفې په پوهنځي کې کړې دي. لس کاله یې په بېلابېلو ولایتونو کې د هېواد د زامنو پر ښوونه او روزنه تېر کړي دي. د ماموریت دولس کلنه دوره یې په کابل پوهنتون، فوایدِ عامې او قبایلو وزارت کې تېره کړې ده. په ماموریت کې دویمې رتبې ته رسېدلی و، چې ماموریت یې پرېښود او المان ته یې سیاسي پناه راوړه.

له زلمیتوبه یې په شعر ویلو لاس پورې کړی دی او د شعر سره سره یې په نثر، لنډې کیسې او ناول لیکلو هم خپل ازمېښت کړی دی.

چاپچاري: د دانش خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه ـ پېښور
Tel/Fax:+92-91-2564513/E-mail:danishk2k2000@yahoo.com